| | | |
|---|---|---|
| | – ښوونکی د دریم تمرین غیر مرتبې جملې په تخته لیکي او د درې تنو زده کوونکو څخه غواړي چې یو په بل پسې د ټولګي مخې ته راشي او جملې د ښوونکي په مرسته ترتیب کړي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکي په دوه ډلو ویشي او یوې ډلې ته لارښوونه کوې تر څو فکر وکړي چې درې غیر مرتبې جملې د تمرین له جملو څخه جوړې کړي او د ډلې یو استازی دې غیر مرتبې جملې په تخته ولیکي، او له بلې ډلې څخه غواړي چې د یو بل په مرسته سره جملې مرتبې کړي او د تختې په مخ یې ولیکي.<br><br>**کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د (مَن) دکلمې څخه په استفادې سره څلور سوالونه جوړ کړي او ځوابونه یې هم ووایي او په خپلو کتابچو کې یې ولیکي. | ۵ دقیقې |

**لوست: پنځم (لومړۍ برخه)**

**سرليک: الصَّفُّ.**

**مخ: ۱۷– ۱۸**

**وخت: ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت)**

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- له دوو کلمو څخه جمله جوړه کړای شي.
- د (هذا) او (هذه) تر منځه په فرق پوه شي.
- د (س) او (ص) تلفظ داسې زده کړي تر څو د دواړو تورو تر منځه توپير په ډاګه شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

په عربي ژبه کې يو ډول اسماء د اسماء اشاره په نوم ياديږي چې په دې درس کې د اسم اشارې له جملې څخه (هذا) او (هذه) دي.(هذا) د مفرد مذکر لپاره استعماليږي، او (هذه) د مفرد مؤنث او جمع غير عاقل لپاره استعماليږي.هر کله چې وغواړو مفرد مذکر ته اشاره وکړو نو په دې حالت کې له(هذا) څخه استفاده کوو او کله چې مفرد مؤنث او يا جمع غير عاقل ته اشاره وکړو په دې حالت کې (هذه) استعمالوو او وايو– هذه غرفة – کلمه د (باب) مذکر ده، نو ځکه د اشارې په وخت کې ورته وايو (هذا باب).

د کلماتو معنا: واسع: لوی، پراخ.مغلق.بند، تړلی) نظيفة: پاکه.البُستان: باغ.جميل: ښکلی، ښاپسته.

د لوست ميتودونه: سوال او ځواب، يو کسيز – ډله ييز.

د لوست مرستندويه توکي: کتاب – تخته – عکس – لوحې، ورقه.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی وروسته له سلام احوال پوښتنې، د ټولګي نظم او کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي.<br>– څوک کولای شي د (مَن) له کلمې څخه سوال جوړ کړي؟<br>– څوک کولای شي د (مَن هذا) او (مَن هذه) په منځ کې فرق بيان کړي؟ | |
| ۳۵ دقيقې | – هڅوونکې پوښتنې:<br>– څوک کولای شي ووايي: صنف ته په عربي کې څه وايي؟<br>– محترم ښوونکی وروسته له ځواب موندلو نه د نوي | |

| | | |
|---|---|---|
| | لوست سرلیک چې (الصفُ) دی په تخته لیکي. زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او نوی لوست د الله جل جلاله په نوم سره پیل کوي.<br>- محترم ښوونکی نوی لوست په مناسب آواز سره دوه ځلې زده کوونکو ته لولي او له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست له پیل څخه تکرار کړي. وروسته دوی ته لارښوونه کوي چې یو ځل د لوست متن په چوپتیا سره ولولي او مشکل کلمات په نښه کړي ښوونکی مشکل کلمات په تخته لیکي او معنا کوي یې بیا زده کوونکو ته هدایت ورکوي چې هغه په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- محترم ښوونکی له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په لوړ آواز سره ولولي او پخپله د دوی اشتباهات او غلطي اصلاح کوي.<br>- محترم ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې خپل کتابونه بند کړي او پخپله یوه یوه جمله د لوست له جملو څخه په لوړ آواز سره لولي او له زده کوونکو څخه غواړي چې معنا او مفهوم یې بیان کړي، کله چې ښوونکی مطمئن شو چې زده کوونکو لوست یاد کړ د اول تمرین په حلولو پیل کوي او دوه مثالونه د بېلګې په توګه زده کوونکو ته حل کوي لکه: هذا کتاب– هذا قلم –<br>ښوونکی د پورتنیو دوو مثالونو څخه په استفادې سره درې مثالونه نور په زده کوونکو حلوي او غلطیانې یې اصلاح کوي.<br>- محترم ښوونکی د دویم تمرین جملې په پنځو تنو زده کوونکو لولي او لارښوونه ورته کوي چې جملې د ټولګې په تخته ولیکي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست اول او دویم حل شوي تمرینونه په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ۵ دقیقې |

**لوست**: **پنځم** (**دویمه برخه**)

**سرلیک:** الصَّفُ

**مخ: ۱۹- ۲۰**

**وخت: ۴۵ دقیقې** (یو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- جملات په سمه توګه ولولي.
- د کلماتو آخري حرکتونه وپیژني.
- د (س) او (ص) سم تلفظ زده کړي.
- د (من) او (ما) استعمال او د هغې ځایونه زده کړي.
- د (هذه) او (هذا) کلمات په سمه توګه استعمال کړي.

**د کلماتو معنا:** کَأس: ګیلاس.قصعة: کاسه.سکین.چاړه.

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – یو کسیز او ډله ییز.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تابلو، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګې تنظیم او د کـــورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک دغه کلمې معنا کولای شي؟ (مغلق، واسع).<br>– څوک د اسم اشارې (هذا او هذه) څخه جمله جوړولی شي؟<br>– محترم ښوونکی نوی لوست د الله په نوم پیل کوي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي بیا د دریم تمرین په حل پیل کوي او دغه جملـــې د تختې په مخ لیکي:<br>هذا کرسي– هذا ولد– هذه تلمیذة.او بیا د درې تنو زده کوونکـــو څخـــه غواړي چې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د (ما– مـــن) د اســـماء استفهام څخه سوالونه جوړ کړي. | |
| ۳۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د څلورم تمرین چې د کتاب په (۱۹) مخ کې دی پیل کوي. بیا د (س او ص) حرفونه د سم تلفظ په مراعاتولو سره زده کوونکو ته لولي او هغوی ته وایي چې دغه حروف په ســـمه توګه تلفظ کړي او په فرق یې پوه شي.<br>– محترم ښوونکی د پنځم تمرین څلور نمونې زده کوونکو ته په دې ډول حلوي: | |

| | | |
|---|---|---|
| | - هذه غرفة – هذا حمام – هذا كأس – هذه قصعة او نور یې په زده کوونکو باندې په کتابچو کې حلوي.<br>- محترم ښوونکی هغه کلمې چې په الف او لام لیکل شــویدي پــه یوستون او هغه کلمې چې الف او لام نه لري په بل ســتون کــې لیکي. زده کوونکو ته توضیحات ورکوي: هغه کلمات چې په الف او لام شروع شویدي د هغوی په آخر کې تنوین نه راځــي (دوه زوروونه، دوه زیرونه، دوه پېښونه) او هغه کلمات چې الف او لام نه لري د هغوی په آخر کې تنوین راځي او محتــرم ښــوونکی د نکرې او معرفې په موضوع هم په لنډه توګه رڼا اچوي.<br>- محترم ښوونکی د تمرین کلمات په تخته لیکي او په لوړ آواز یــې لولي. له زده کوونکو څخه غواړي چې له ده سره یې تکرار کړي.<br>- محترم ښوونکی د اووم تمرین کلمات په تخته لیکي او معنا کوي یې، د مثــا ل پــه توګــه: قلــم الرصــاص: پنســل.الألــوانُ: رنګونه.اللوحةُ:لوحه.الملف:دوسیه.جدول الحصص:مهال ویش.<br>- **کورنۍ دنده:** محترم ښوونکی الواجب المنزلي (کورنۍ دنده) چې د کتاب په (۲۰) مخې کې چې کوم تمرین دی هغه زده کوونکو ته کورنۍ دندې په توګه ورکوي. | ۵ دقیقې |

**لوست:** شپږم (**لومړۍ برخه**).
**سرليک:** المدرسةُ.
**مخ:** ۲۱.
**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت).
**موخې:**
**زده کوونکي بايد:**

- أنا او أنتَ ضميرونه وپيژني.
- د (أنا او أنتَ ضميرونه په جملو کې استعمال کړي.
- په مضارع فعل چې مفرد متکلم ته راځي پوه شي.
- مضارع فعل چې مخاطب ته راځي په جملو کې استمال کړي او په هغه پوه شي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**
د أنا او أنت کلمې ضميرونه دي چې د نوم پر ځای راځي
أنا مفرد متکلم ته استعماليږي (مذکر –مؤنث)
أنتَ: مفرد مذکر مخاطب ته استعماليږي.
له دې دوه ضميرونو څخه پرته نور ضميرونه هم پدې ډول شته دي.
أنتِ: مفرد مخاطب مؤنث ته استعماليږي.
أنتما: تثنيه مخاطب ته استعماليږي (مذکر– مؤنث)
أنتم: جمع مذکر مخاطب ته استعماليږي.
أنتنَّ: ضمير د جمعې مؤنث مخاطب لپاره دی.
هُنَّ: د جمع مؤنث غايب لپاره استعماليږي.
هو: د مفرد غايب مذکر لپاره استعماليږي.
هي: د مفرد غايب مؤنث لپاره استعماليږي.
هما:د تثنيه ضمير دی چې د مذکر او مؤنث غايب لپاره استعماليږي.
هم: د جمع مذکر غايب لپاره استعماليږي.
نحنُ: د جمع متکلم مذکر او مؤنث لپاره او همدا راز د مثنی متکلم لپاره استعماليږي.
ټولو دغو ضمايرو ته (منفصل ضماير) يعنې نا پيوست ضميرونه وايي. نور ضماير هم شته دي چې د اسم، فعل او حرف سره يو ځای او پيوست راځي چې په آينده کې به يې ولولو.
**نوي لغتونه:** أين: چيرې.أيُ: څوک.أخي (زما ورور).
**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب، ډله ييز، او تکرار.
**دلوست مرستندويه توکي:** تخته، تباشير او کتاب.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم، دکورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر درس ارزونه کوي.<br>– څوک د دغې کلمې معنا ویلی شي؟ (كأس، سِكين، قصعة)<br>– د انګیزې پارول:<br>– محترم ښوونکی د نوي لوست د عنوان د پیدا کولو لپاره وایي ښوونځي ته په عربي ژبه کې څه وایي ؟<br>– محترم ښوونکی د سم ځواب د لاسته راوړلو او وروسته د نوي لوست عنوان چې (المدرسةُ) دی په توره تخته لیکي. زده کوونکي د کتاب (۲۱) مخ ته متوجه کوي او نوی لوست د الله په نامه شروع کوي. | |
| ۳۰ دقیقې | – محترم ښوونکی نوی لوست په مناسب آواز لولي او معنا کوي يې. بیا له دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او محاوره ولولي، او ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی بیا محاوره په څلورو تنو زده کوونکو لولي او له دوه نورو څخه غواړي چې محاوره ترجمه کړي.<br>– محترم ښوونکی د لوست د لومړي تمرین دوه مثالونه د تختې په سر زده کوونکو ته حلوي په داسي ډول: أين تذهب يا أخي؟ أذهبُ الِى المدرسةِ.او نور مثالونه زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په توګه ورکوي. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>– څوک کولای شي دغه جمله ترجمه کړي؟ (أين تذهب يا أخي).<br>– څوک کولای شي د (اذهب) کلمه په تخته ولیکي؟<br>– څوک د دغه سوال ځواب ویلی شي (أين مدرستک). | |

|  | **د لوست پیام:**<br>– محترم ښوونکی د حوار او مباحثې اهمیت په ژبه کې تشریح کوي. بیا وروسته د سلام ورکولو په هکله او د هغې د اهمیت په باره کې خبرې کوي.<br><br>– **کورنۍ دنده :**<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست دویم تمرین چې د عددونو لیکل له یو څخه تر لسو پورې دی په خپلو کتابچو کې ولیکي. |  |
| --- | --- | --- |

**لوست:** **شپږم** (**دویمه برخه**)

**سرلیک:** المدرسةُ

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- عددونه له یو څخه تر لسو پورې په عربي ژبه زده کړي.
- د مفرد متکلم او مفرد مخاطب متصل ضمیرونه وپیژني.
- د (کاف الخطاب) او (یاءُ المتکلم) متصل ضمیرونه په جملو کې استعمال کړي.
- په محاوره پوه شي او زده یې کړي.

**د کلماتو معنا:** اعوام: کلونه.لي: زما.ملعب: د لوبو میدان.

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – یو کسیز او محاوره.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او ترتیب، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک دغه جمله معنا کولی شي؟ (أين تذهب يا أخي).<br>– نوی لوست د الله جل جلاله په نامه شروع کیږي. | |
| ۳۵دقیقې | – محترم ښوونکی د لوست دویم تمرین په زده کوونکو لولي او معنا کوي یې. بیا له دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې عددونه یو وار بیا په تکرار ولولي او له نورو زده کوونکو څخه غواړي چې عددونه تکرار کړي.<br>– محترم ښوونکی د لوست دریم او څلورم تمرین په زده کوونکو باندې حلوي او لومړی د دریم تمرین سوالونه په توره تخته لیکي او بیا د هر سوال لپاره ځوابونه لیکي.<br>– أنت تكتبُ الدرسَ.<br>– أنت تقرأ الكتابَ.<br>– أنتَ تفهم الدرسَ. | |

| | | |
|---|---|---|
| | – أنت تجلسُ على الكرسي.<br>– محترم ښوونکی د څلورم تمرین تش ځایونه په مناسبو کلمو ډکوي.<br>– عشرة – خمسة – ثلاثة – تسعة – أربعة.<br>بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې عددونه په پنسل پــه خپلــو کتابونو کې ولیکي.<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین زده کوونکو ته لولي او معنا کوي یې. وروسته له اتو تنو زده کوونکــو څخــه غواړي چې څلور زده کوونکي سوالونه او څلور نور یــې ځوابونه ولولي. ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرین لولي او زده کوونکو ته لار ښوونه کوي چې تمرین په خپلــو کتــابچو کــې ولیکي.تشویقوي یې او مرسته ورسره کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اووم تمرین په توره تخته لیکــي بیایې لولي او معنا کوي یې. له زده کوونکو څخه غواړي چې ورسره یې تکرار کړي. (المکتبةُ: کتابتون) (مکتــبُ المدیر: د مدیر دفتر.الحاسوب: کمپیوټر.غرفةُ المدرسین: د استادانو اُتاق.المختبر: لابراتوار.الطابور: لین.<br><br>**کورنۍ دنده:** محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست الواجب المنزلي په خپلو کتابچو کې ولیکــي.د مثال په ډول: المدرسةُ کبیرةٌ. | ۵ دقیقې |

**لوست: اووم: (لومړۍ برخه)**

**سرلیک: الأسرةُ.؛**

**مخ:**

**وخت: ۴۵ (دقیقې یو درسي ساعت)**

**موخې:**

- زده کوونکي باید: اسم اِشاره (اِشاري ضمیرونه) وپیژني.
- د اسم اشارې په مفرد او جمع پوه شي.
- د اسم اشارې په جمع (هؤلاء) په بشپړه توګه پوه شي.
- د یو اسم سره بل اسم اضافه کړي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات**

**۱ – دلته مفرد اسمِ اِشاره په جمع بدلیږي او عربي ژبه (په نحو کې) اسم اِشاره مفرد مذکر او مؤنث ته جلا استعمالیږي، که وغواړو هغه په جمع بدل کړو (هؤلاء) ورته وایو او دلته (هؤلاء) د جمع مذکر او مؤنث لپاره یو شان راځي خو اسم اشاره چې تثنیې ته راځي هغه د مفرد په شان وي او هغه پدې ډول چې مذکر تثنیه ته (هذان) او مؤنث ته یې (هاتان) استعمالیږي.**

**۲ – که وغواړو ملکي ضمیر استعمال کړو د نوم په آخر کې باید (یاء) اضافه کړو چې مفرد متکلم راښکاره کوي او دغه ضمیر د لفظ سره متصل کیږي. د مثال په ډول (کتابي) زما کتاب (قلمي) زما قلم.**

**۳ – د عربي ژبې کلمات په درې ډوله په جمعې سره بدلیږي.**

أ: د مفرد اسم په آخر کې (یاء او نون) او یا (واو او نون) اضافه کیږي او هغه په جمع مذکر سالم سره بدلیږي.مثال: مدرسون، مدرسین.

ب: او یا په آخر کې یې الف او تاء اضافه کیږي او هغې ته جمع مؤنث سالم وایي.مثال: مسلمات، تلمیذات.

ج: او که د کلمې په اصل کې فرق راشي او له مفرد څخه یو حرف له منځه ولاړ شي او یا ا ضافه شي هغې ته جمع تکسیر وایي: مثال: تلامیذ.

**د کلماتو معنا:** اُسرة: کورنۍ.هؤلاء: (هغوی) أخوات: خویندې.

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – یو کسیز ه او تکرار.

**دلوست مرستندویه توکي:** کتاب، تباشیر، د اِمکان په صورت کې ټیپ او کسیټونه.

د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څو کوک کولی شي عددونه له یو څخه تر پنځو پورې په عربي ژبه ووایي.<br>– **د انګیزې پارول:**<br>– څوک ویلای شي چې کورنۍ ته په عربي ژبه کې څه وایي؟ | |
| ۳۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د سم ځواب له اوریدو څخه وروسته د نوي لوست عنوان چې (الأُسرةُ) دی په توره تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپلو کتابونو ته متوجه شي او لوست د الله جل جلاله په نوم سره پیل کړي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست په مناسب آواز سره لولي او مشکل کلمات د تختې په سر لیکي او معنا کوي يې. وروسته له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست ولولي او معنايې کړي. بیا له دوو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او یو يې د (هذا او هذه) کلمات او بل يې د (هؤلاء) کلمه په جملو کې استعمال کړي.<br>– ښوونکی له دوی سره پوره مرسته کوي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک ویلی شي چې د (الأُسرةُ) معنا څه ده؟<br>– څوک د (هؤلاء) کلمه په جمله کې استعمالولای شي؟<br>– څوک د (هؤلاء أخوات عمر) جمله په تخته لیکلی او معنا کولای شي؟ | |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی د لوست د لومړي تمرین دوه مثالونه زده کوونکو ته حلوي او نور يې کورنۍ دنده ورکوي. د مثال په ډول: (من هذا؟ هذا عمر) من هذا الرجل؟ هذا والد عمر.<br><br>**د لوست پیغام:**<br>– محترم ښوونکی د کورنۍ د محبت په موضوع رڼا اچوي او ورته وايي چې په اولادونو فرض دي چې دخپل مور او پلار احترام ولري. | |

**لوست: اووم (دويمه برخه)**

**سرليک:** الأسرةُ.

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- د اشارې (هذا او هذه) اسمونه په جملو کې د جمعې په ضمير سره بدل کړای شي.
- هغه کلمات چې په لوست کې ذکر شويدي په جمع بدل کړای شي.
- د خپلو خپلوانو نومونه (د قرابت په لحاظ) په عربي کې زده کړي.
- مفرد کلمات د جمعې په اشکالو سره بدل کړای شي.
- د (اسماء الاشارات) څخه د مفرد او جمعې لپاره جملې جوړې کړای شي.

**د کلماتو معنا:** زميل: ملګری. فرح: خوشحال.خال: ماما.

**د لوست ميتودونه:** نمونه يې قرائت – سوال او ځواب –يو کسيز او په ډله ييزه توګه – تکرار

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تير درس ارزونه کوي.<br>– څوک د (الأسرةُ) معنا ويلی شي؟<br>نوی لوست د الله جل جلاله په سپيڅلي نوم شروع کوي. | |
| ۳۵ دقيقې | – محترم ښوونکی د دويم تمرين جملې چې په (۳۶) مخ کې دي په تخته ليکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې دغه جملې منظمې او مرتبې کړي.<br>– محترم ښوونکی د دريم تمرين په حل پيل کوي او تمرين په زده کوونکو باندې د سوال او ځواب په ډول په عملي توګه تکراروي.<br>– محترم ښوونکی د (۲۷) مخ د څلورم تمرين جملات په تخته ليکي او بيايې په زده کوونکو باندې په لوړ آواز لولي. بيا له دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او جملې د تختې له مخې په لوړ آواز ولولي او نور زده کوونکي يې په دوی پسې تکرار کړي. | د دويم تمرين حل:<br>– هذا والد عمر.<br>– هذا بيت عمر.<br>– هؤلاء اخوةُ عمر.<br>– هذه اُمُّ عمر. |

| | | |
|---|---|---|
| | – محترم ښوونکی پنځم تمرین حلوي او دوه مثالونه د نمونې په شکل زده کوونکو ته په تخته حل کوي.أسرة: الأسرةُ.جدّ: الجدُ او بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د کلماتو په سر تعریف راوړي او په خپلو کتابچو کې یې ولیکي.<br>– محترم ښوونکی شپږم تمرین زده کوونکو ته په دې شکل حلوي.<br>۱ – هؤلاء رجال، ۲ هؤلاء زملاء، ۳ هؤلاء مدرسون.۴ هؤلاء تلمیذات.۵ هؤلاء طبیبات.<br>محترم ښوونکی جملات په زده کوونکو تمرین او تکراروي. په دې خاطر چې زده کوونکي په جمع کولو پوه شي.<br>– محترم ښوونکی اووم تمرین زده کوونکو ته لولي او معنا کوي یې. هغوی ته لارښوونه کوي چې د خپلو خپلوانو نومونه (د خپلوۍ په اساس) په عربي ژبه کې زده کړي او حفظ یې کړي. | |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:** محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې کورنۍ دنده (الواجبُ المنزلي) د الف قطار جملې د ب قطار له جملو سره د خط په واسطه په خپلو کتابچو کې یو ځای کړي. د مثال په ډول: التلمیذُ یکتب بالقلم الاسودِ. | زده کوونکي د تمرین حل په کتابچو کې لیکي. |

**لوست**: **اتم** (**لومړۍ برخه**)

**سرليک:** المسجد.

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- لوست په سمه توګه ولولي.
- اسماءُ التثنية او د استعمال ځايونه يې وپيژني.
- د مثنی په جوړولو پوه شي.
- مثنی په جملو کې استعمال کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

۱ – که چيرې اتم لوست ته وګورو معلوميږي چې کلمات يې د مفرد نه تثنيې ته استعمال شويدي، که وغواړو چې يوه کلمه له مفرد څخه تثنيې ته بدله کړو په آخر کې يې الف او نون يا ياء او نون اضافه کوو. په دواړو صورتونو کې د اسم په پای کې نون مکسور واقع کيږي د مثال په ډول: تثنيه په الف او نون – بابان – کبيران.حلقتان تثنيه په ياء او نون سره: رکعتين – بابين – کبيرين – حلقتين.

۲ – په دې لوست کې ګورو چې يوه کلمه بلې کلمې ته صفت واقع شويده لکه: (جامع مسجد) دلته د جامع کلمه مسجد ته صفت واقع شويده او په دغې جمله کې (بابان کبيران) د کبيران کلمه صفت واقع شويده بابان ته.

په عربي ژبه کې صفت د اعراب له مخې تابع د موصوف وي که موصوف مرفوع وي صفت هم مرفوع راځي او که منصوب وي صفت هم منصوب راځي او که مجرور وي مجرور راځي.

**د کلماتو معنا:** بابان کبيران (دوه غټې دروازې) عند (ورسره) مئذنة (مناره) مرتفعة (لوړ) اِفتح (خلاص کړه) لي (زما لپاره).اللهم (يا الله)

**د لوست ميتودونه:** نمونه يې قرائت – سوال او ځواب – يو کسيز او ډله ييز –

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب – تخته – تباشير –د امکان په صورت کې ټيپ او کستې.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظيم او کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تير درس ارزونه کوي.<br>– څوک د دغو کلمو معنا ويلی شي؟ (الجدةُ، الخالةُ، الأَخُ )<br>– د انګيزې پارول دنوي لوست د عنوان پيدا کولو لپاره.<br>– څوک ويلی شي چې هغه ځای چــې مســلمانان پکــې د جماعت لمونځ اداء کوي څه ورته وايي؟ | |
| ۳۵ دقيقې | – محترم ښوونکی د ځواب له لاسته راوړلو وروسته د نــوي | |

| | | |
|---|---|---|
| | لوست عنوان چې (المسجِدُ) دی په توره تخته په ښه خط ليکي او د زده کوونکو توجه کتابونو ته اړوي.<br>محترم ښوونکی نوی لوست په مناسب آواز لولي او معنا کوي يې. مشکل کلمات په تخته ليکي او له دوو زده کوونکو څخه غواړي چې په وار سره نوی لوست ولولي او معنا يې کړي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکي په دوو ګروپونو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې لوست په چوپتيا سره ولولي. بيا د ګروپ په سر يو يو زده کوونکی د ټولګې مخې ته را غواړي چې لوست په سمه توګه ولولي.<br>– محترم ښوونکی له يو زده کوونکي څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او دغه دعا په تخته وليکي (اللهم افتح لي أبواب رحمتک) او له نورو زده کوونکو څخه غواړي چې دغه دعا حفظ کړي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک دغه عبارت معنی کولی شي؟ (بابان کبيران).<br>– څوک دغه کلمه په مفرد سره بدلولی شي؟ (حلقتان).<br>– څوک د مسجد د ننوتلو دعا په يادو ويلی شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی د کتاب (۳۰) مخ لومړی تمرين زده کوونکو ته د دندې په توګه ورکوي.<br><br>**د لوست پيغام:**<br>مسجد د مسلمانانو په ژوند کې ډير اهميت لري او محترم ښوونکی بايد د مسجد آداب زده کوونکو ته وروښيي. | ۵ دقيقې |

**لوست: اتم (دویمه برخه)**

**سرلیک:** المسجدُ.

**مخ:**

**وخت : ۴۵ دقیقې** (یو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- له مفرد څخه د مثنی د جوړولو په طریقه پوه شي.
- مربوطه (ة) وپیژني.
- له مؤنثو اسماؤ څخه مثنی جوړه کړای شي.
- د (انتم او نحنُ) ضمایر په جملو کې استعمال کړای شي.

**د کلماتو معنا:** المحافظةُ: ولایت.الیومُ (ورځ) اللیلةُ: شپه.حصتان: دوه درسي ساعتونه.قبل الجلوس: مخکې له کښېناستلو څخه).

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – یو کسیز – تکرار – او ډله ییز.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې څخه وروسته ټولګی ترتیب او تنظیموي بیا د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک په عربي کې ویلی شي؟ (جومات دوه غټې دروازې لري)<br>– نوی لوست د الله په نامه شروع کیږي. | |
| ۳۵ دقیقې | – محترم ښوونکی دویم تمرین په داسې ډول زده کوونکو ته حلوي (سقفان، اِمامان، منارتان، سورتان، صفان، أذانان، رکعتان، وقتان، قریتان، سجدتان).<br>– محترم ښوونکی دریم تمرین زده کوونکو ته په داسې ډول حلوي چې له دوه زده کوونکو څخه غواړي د ټولګي مخې ته راشي او د تمرین د جملاتو له مخې نه د (نحنُ او أنتم) کلمات په خپلو منځو کې د سوال او ځواب په توګه کار کړي او نورو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دغه عملیه په خپل منځ کې د ناستې په ډول اِجراء کړي. | |

| | | |
|---|---|---|
| | محترم ښوونکی څلورم تمرین پدې ډول حلوي: ۱ – صلاة العید رکعتان.۲ – في السنة عیدان.۳ – للقراءةِ حصتان في الأسبوع.<br>۴ – في هذه القریةِ مسجدان.<br>محترم ښوونکی څلورو تنو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې غیر مرتبې کلمې مرتب او په تخته یې ولیکي.<br>– محترم ښوونکی پنځم تمرین په دې ډول زده کوونکو ته حلوي.<br>– کم صلاة في الیوم و اللیلةِ – کم یوماً في الأسبوع.کم عیداً في السنةِ.کم اِخوةً لک.<br>– محترم ښوونکی د شپږم تمرین په تشو ځایونو کې دغه کلمې ځای په ځای کوي.<br>الحرامُ، النبوي، الاقصی.<br>بیا اووم تمرین په تخته لیکي او معنا کوي یې.<br>المصحف: قرآن کریم.<br>المنبرُ: منبر.<br>السجادة: مصلّی، جاینماز<br>دولاّب: الماری.<br>القبةُ: گنبد.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی د لوست آخرنی تمرین زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په توگه ورکوي او هغوی ته وایي چې له مثالونو سره سم تمرین حل کړي. | ۵ دقیقې |

## لوست: نهم (لومړۍ برخه)

**سرلیک:** تلمیذ أمین.

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي باید :**

- لوست په سمه توګه ولولي.
- د کلماتو سم تلفظ زده کړای شي.
- ماضي فعل او فعلیه جمله وپیژني.
- له (من) څخه استفهامیه جمله جوړه کړای شي.
- دوه غایب ضمیرونه (هو – هي) چې مفرد مذکر او مؤنث دواړو ته استعمالیږي وپیژني.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

په اووم لوست کې موږملکي ضمیرونه چې (مفرد متکلم) ته راځي ولوستل. اوس اړینه ده چې هغه ضمایر وپیژنو چې مفرد مخاطب او غایب ته استعمالیږي.او په تیر لوست کې مو ویلی وو چې که وغواړو د کتاب څخه ملکي ضمیر او مضاف جوړ کړو وایو (کتابي) او همدغه کلمه که ملکي ضمیر مفرد مخاطب مضاف جوړ کړو وایو (کتابک) او دلته غواړو چې ټول ملکي مخاطب او غایب ضمیرونه په جدول کې ښکاره کړو.

| دضمایرو قسمونه | مثالونه |
|---|---|
| ملکي ضمیر دمفرد مذکر مخاطب لپاره. | کتابک – قلمک. |
| ملکي ضمیر د تثنیه مذکر مخاطب لپاره. | کتابُکما – قلمکُما. |
| ملکي ضمیر د جمع مذکر مخاطب لپاره. | کتابُکم – قلمکُم. |
| ملکي ضمیر د مفرد مؤنث غایب لپاره. | کتابُها – قلمها |
| ملکي ضمیر د تثنیه مؤنث مخاطب لپاره. | کتابُکما – قلمکما. |
| ملکي ضمیر د جمع مؤنث مخاطب لپاره. | کتابُکنَّ – قلمُکنَّ. |
| ملکي ضمیر د مفرد مذکر غایب لپاره. | کتابُهُ – قلمُهُ . |
| ملکي ضمیر د تثنیه مذکر غایب لپاره. | کتابُهما – قلمهما. |
| ملکي ضمیر دجمع مذکر غایب لپاره. | کتابُهم – قلمُهم. |
| ملکي ضمیر د مفرد مؤنث غایب لپاره | کتابُها – قَلمُها. |
| ملکي ضمیر د تثنیه مؤنث غایب لپاره. | کتابُهُما – قَلمُهما. |
| ملکي ضمیر د جمع مؤنث غایب لپاره. | کتابهنَّ – قلمهنَّ. |
| ملکي ضمیر د تثنیه مذکر او مؤنث متکلم لپاره. | کُتُبُنَا – أقلامُنَا |

**د کلماتو معنا:** وجدَ: پیدا یې کړ.فقَدَ: ورک یې کړ.قال: وویل / ویلي یې وو.

**د لوست میتودونه:** نمونه یې قرائت – سوال او ځواب – یو کسیز او په ډله ییزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب – تخته – تباشیر –د اِمکان په صورت کې ټیپ او کسټې.

**د لوست بهیر:**

| د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظـیم څخـه وروسته کورنۍ دنده ملاحظه کوي او بیا د تیر لوست ارزونه کوي. <br> – څوک کولای شي دغه جمله معنا کړي؟ القبةُ والسجادةُ. <br> – د انګیزې پارول د نوي لوست دعنوان پیدا کولو لپاره. <br> – څوک ویلی شي چې د خیانت ضد کلمه کومه ده؟ | ۵ دقیقې |
| | – محترم ښوونکی د ځواب مندلو وروسته د لوست عنوان چې (تلمیذ أمین) دی په تخته لیکي او زده کوونکي کتاب ته متوجه کـوي او نوی لوست د الله جل جلاله په نامه پیل کوي. <br> – محترم ښوونکی د نوي لوست پـه هکلـه دوه زده کوونکـو تـه لارښوونه کوي چې د نوي لوست مشکلې کلمې په چوپتیا سره یاد داشت کړي او بیا د زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په مناسب آواز ولولي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې یاد داشت شوې کلمې په تخته ولیکي او بیا له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د کلماتو معنا ولیکي او په دې هکله ورسره پوره مرسته کوي. <br> – محترم ښوونکی د زده کوونکو له سوبې سره سم د ملکي ضمیرونو په باره کې معلومات ورکوي او مثالونه یې ورته بیانوي. <br> – محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دغه مترادفـې کلمې د ۳۴ مخ له اول تمرین څخه را په ګوته کړي (فقد – ذهب – او آمین). <br> **ارزونه:** <br> – څوک د فقد، وجد او ذهب کلماتو معنا ویلای شي؟ <br> – څوک لوست په سمه توګه لوستلی شي؟ <br> – څوک د (من فقد قلمَهُ) جمله په تخته لیکلی او معنا کولی شي؟ | ۳۵ دقیقې |
| | **کورنۍ دنده:** <br> – محترم ښوونکی دویم تمرین چې د کتاب په (۳۴) مخ کې دی زده کوونکو ته دکورنۍ دندې په توګه ورکوي. | ۵ دقیقې |

|  | - **د لوست پیغام:**<br>- محترم ښوونکی د أمانت په هکله زده کوونکو ته معلومات ورکوي او په ورځني ژوند کې یې د أمانت له ارزښت څخه خبـــروي او دا حدیث شریف ورته شرح کوي چې (لا اِیمانَ لِمن لا أمانةَ لـــه و لا دِین لمن لا عهدَ له) یعنې هغه څوک چې أمین نه وي هغه اِنســـان د کامل اِیمان خاوند نشي جوړیدلای او څوک چې په وعدهٔ وفا نـــه کوي هغه اِنسان دیندار نه وي. |  |
|---|---|---|

**لوست**: **نهم (دويمه برخه)**

**سرليک:** تلميذ أمين.

**مخ:**

**وخت ۴۵ دقيقې** (يو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- د (هو، هي) ضميرونه په جملو کې وپيژني.
- متصل ضميرونه (ک، ي، ه) په سمه توګه وپيژني. د مثال په توګه (کتابکَ، کتابي، کتابُهُ)
- د (تِ، تُ) په ضميرونو چې د فعل په آخر کې راځي پوه شي.
- د ضاد او د ال تلفظ په صحيح توګه سره وکړای شي.

**د کلماتو معنا**: لمن: د چا.الکسول: تنبل.المثالي: نمونه يي.أسرع: تيز (چټک) أعطى: ور يې کړه.
المُهملُ: بې پروا.المجتهدُ: کوښښ کوونکی.المهذبُ: با ادب.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب –يو کسيز ډله ييز او په مناقشه يي توګه.

**د لوست مرستندويه توکي:**

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې او ټولګي تنظيمولو څخه وروسته کورنۍ دنده ګوري او د تير لوست ارزونه کوي:<br>– څوک ويلای شي چې په عربې کې أمانت ته څه وايي؟ | |
| ۳۵ دقيقې | – محترم ښوونکی نوی لوست د الله جل جلاله په نوم سره پيلوي.<br>– محترم ښوونکی د دريم تمرين مفرد مذکر او غايب ضميرونه په مفرد مؤنث غايب بدلوي او ورسره په جملو کې بدلون راولي، دوه مثالونه زده کوونکو ته حلوي او بيا د څلورو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې مذکر ضميرونه په مؤنثو بدل کړي.<br>– محترم ښوونکی څلورم تمرين چې د ضاد او دال صحيح تلفظ دی په زده کوونکو تکراروي چې دوی د دغو حرفونو په سمه توګه تلفظ وکړای شي او تر منځه يې په فرق پوه شي.<br>– محترم ښوونکی پنځم تمرين په زده کوونکو د سوال اوځواب په ډول اجراء کوي او مرسته ورسره کوي او تشويقوي يې.<br>– محترم ښوونکی د شپږم تمرين کلمات په تخته ليکي او يو مثال د نمونې په ډول زده کوونکو ته په تخته ليکي او حلوي يې. له زده کوونکو څخه غواړي چې متصل ضميرونه د متکلم – مخاطب او غايب دکلماتو سره يو ځای کړي. | دريم تمرين:<br>۱ – الهديةُ<br>۲ – هي أخذت.<br>۳ – الجائزة.<br>۴ – هي شکرت.<br>۵ – الاستاذةُ.<br>٦ – هي اشترت.<br>۷ – الدفترُ.<br><br>د شپږم تمرين حل:<br>قلمي – قلمکِ – قلمهُ<br>فصلي – فصلکَ – فصلهُ. |

| | | |
|---|---|---|
| | – محترم ښوونکی د اووم تمرین تش ځایونه په مناسبو کلمو چې په قوسینو کې شته دي ډکوي.<br>– یحبُ المعلم التلمیذ (المهذب)<br>– یأخذ الجائزة التلمیذ (المثالي).<br>– التلمیذُ (المجتهدُ) یحترمُ الاستاد.<br>– یرسب (الکسول) في الامتحان.<br>– محترم ښوونکی اتم تمرین د مناقشې په ډول په زده کوونکو حلوي او ورڅخه غواړي چې د فعلونو د پای حرکت تعیین کړي. | مدرستي – مدرستکَ مدرستکِ مدرستهُ. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې الواجبُ المنزلي په خپلو کتابچو کې حل کړي. | |

**لوست**: **لسم (لومړی برخه)**

**سرلیک:** البیتُ.

**مخ:**

**وخت: ۴۵** دقیقې (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګي ولولي.
- د اسماء الاستفهام استعمال په جملو کې وکړای شي.
- د (هذه او تلک) تر منځه فرق وکړای شي.
- د کور په چاپیریال کې د شیانو نومونه په عربې کې زده کړای شي.
- د تنوین استعمال او تلفظ ښه زده کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

– أسماءُ الاشارة د مکان او مسافې له لحاظه په دوه ډوله دي:

۱ – هغه اسماء چې نژدې شي ته د اِشارې لپاره اِستعمالیږي مثال: هذا، هذه – د متوسط لپاره تلک، ذلک، د بعید لپاره هناک و هنالک.

د ذکر شوو أسماوو څخه په دې لوست کې یواځې د تلک څخه بحث شویدی.

۲ – که چیرې لوست ته ښه ځیر شو و به وینو چې د غرفة کلمه په غُرف جمع شویده او د مفرد په حالت کې یې تغییر راوستل شویدی چې مربوطه (تا)د آخر څخه حذف او د (ر) سکون په غرف کلمه کې په فتحه بدل شویدی، چې دې جمعې ته د تکسیر جمع وایي. په دې معنا چې مفرد شکل یې ماتیږي او په شکل کې یې تغییر راځي، په همدې ډول د جمع تکسیر په ټولو مفردو کلمو کې تغییر راځي او دغه حالت قیاسي صورت نه لري.

**دکلماتو معنا:** خمس: پنځه.بیتُکم: ستاسې کور.صدیق: ملګری.للضیوف: میلمنو ته.کم: څو.تلک: هغه.غرف: د غرفې جمعه ده (کوټې).

**د لوست میتودونه:** محاوره یي – سوال او ځواب – تکرار – یو کسیز.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب – تخته – تباشیر.

د لوست بهیر:

| د زده کوونکو فعالیتونه | دښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر درس ارزونه کوي:<br>– څوک دغه کلمې معنا کولی شي؟ (الكسول، المثالي، لمن)<br>– د انګیزې پارول د نوې لوست د عنوان لپاره<br>– کور ته په عربي ژبه کې څه وايي؟ | ۵ دقیقې |
| | – محترم ښوونکی د سم ځواب د لاسته راوړلو وروسته د نوي لوست عنوان چې (البيت) دی په توره تخته په ښه خط لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپلو کتابونو ته متوجه شي او نوی لوست د الله جل جلاله په نوم سره پیل کړي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست یو وار په مناسب آواز لولي او له زده کوونکو څخه غواړي چې د ده لوستلو ته په ځیر سره غوږ ونیسي او بیا په دویم وار لوستلو له زده کوونکو څخه غواړي چې وروسته د لوست جملې تکرار کړي.<br>– محترم ښوونکی بیا لوست له معنا سره لولي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې مشکل کلمات له ځان سره یاد داشت کړي او لوست بیا هم په زده کوونکو تکراروي.<br>– محترم ښوونکی د لوست مشکل کلمات د زده کوونکو په واسطه په تخته لیکي او معنا کوي یې. بیا د زده کوونکو له سویې سره سم د استفهام ادوات او د اشارې اسم په اړه چې نږدې او لرې ته استعمالیږي زده کوونکو ته مختصراً معلومات ورکوي که زده کوونکي کوم سوال ولري ځواب ورته وايي.<br>– محترم ښوونکی له یوې ډلې زده کوونکو څخه غواړي چې دوه دوه کسان د تختې مخې ته راشي او لوست د محاورې په شکل ولولي او مرسته ورسره کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرین د محاورې په ډول په زده کوونکو لولي او خپله هم ورسره مرسته کوي. | ۳۰ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>– څوک لوست په سمه توګه لوستلی شي؟ چې هیڅ غلطۍ پکې ونه کړي.<br>– څوک د لوست لومړۍ کربښې معنا کولی شي؟<br>– څوک د دغو کلمو معنا په تخته لیکلی شي؟<br>(بیتُکم، خمس)<br>– څوک د اِستفهام ادوات په دغه لوست کې ښودلی شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته دویم تمرین دکورنۍ دندې په توګـــه ورکوي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي.<br><br>**د لوست پیغام:**<br>په دې لوست کې دغه پیغام شته چې یو ملګری د بل ملګري له کور څخه لیدنه وکړي او د هغه د کور د ستونزو څخه ځان خبرکړي، ځکه چې د اړیکو ساتل زموږ د دین د شعایرو څخه دي. | |

**لوست:** **لسم (دویمه برخه)**

**سرلیک:** البیتُ.

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د اِستفهام په ادواتو سره په عربي کې محاوره وکړای شي.
- عدد او معدود وپیژني او د هغه اِستعمال زده کړي.
- مفرد الفاظ په جمع تکسیر سره جمع کړي.
- مذکر او مؤنث د مشتق په نومونو توپیر کړي.

**د کلماتو معنا:** المطار: هوائي ډګر.المصباحُ: څراغ.الجدارُ: دېوال.الزهرةُ: ګل.کوب: ګیلاس.بئر: څاه.الملعبُ: لوبغاړی.شارع: سرک.المطبخُ: پخلنځای.مضيء: روښانه.

**د لوست میتودونه:** مناقشه یي – سوال او ځواب – ډله ییز – یو کسیز او سیالی.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګې تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د (سیارة، غرفة، مائدة) کلماتو معنا ویلای شي؟ | |
| ۳۵دقیقې | – محترم ښوونکی د لوست دریم تمرین زده کوونکو ته لولي او معنا کوي یې او بیا دوه دوه زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې تمرین د سوال او ځواب په ډول اِجراء کړي.<br>– محترم ښوونکی څلورم تمرین په زده کوونکو لولي او اِشتباهات یې په خپله تصحیح کوي.<br>– محترم ښوونکی د پنځم تمرین دوه مثالونه د نمونې په شکل زده کوونکو ته په تخته حلوي او بیا د شپږو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې په وار سره د تختې مخې ته راشي او یو یې سوال او بل یې ځواب ولیکي.<br>– محترم ښوونکی دلوست شپږم تمرین زده کوونکو ته په تخته په دې ډول حلوي: | |

| | | |
|---|---|---|
| | ١ – هذه شوارع واسعة. ٢ هذه مصابيح مضيئة<br>.٣ – هذه سيارات جديدة. ۴ – هذه جدران مرتفعة. له زده کوونکو څخه غواړي چې جملات په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>– محترم ښوونکی د لوست د اووم تمرين يو مثال په تخته زده کوونکو ته حلوي او له زده کوونکو څخه غواړي چې مناسبې کلمې و ټاکي او د جملو په تشو ځايونو کې يې وليکي:<br>– مثال: اِشرب الماءَ من (البئـرِ) او نـور مثالونـه زده کوونکي په خپلو کتابچو کې ليکي.<br>– محترم ښوونکی د لوست د اتم تمرين کلمات په تختـه ليکي او معنا کوي يې.<br>– مثال: الوسادةُ: تکيه.الاِبريقُ: چاينک.الشـباک: کړکـی. القِدرُ: کټوی.او بيا له زده کوونکو څخه غواړي چې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د تختې کلمات پـه لوړ آواز ولولي او نور زده کوونکي يې ورپسې تکـرار کړي. او بيا لارښوونه کوي چې کلمات له معنا سره په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>**کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې الواجبُ المنزلي په خپلو کتابچو کې حل کړي. | د اووم تمرين حل:<br>١ – القدر.<br>٢ – المائدةُ.<br>٣ – صحن.<br>۴ – حديقة. |
| ۵ دقيقې | | |

**لوست**: **یوولسم (لومړی برخه)**

**سرلیک:** خالد یکتبُ.

**مخ:**

**وخت: ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)**

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولولي او معنا یې کړي.
- د مضارع فعل په غایبو صیغو پوه شي.
- ترتیبي أعداد له یو څخه تر لسو پورې په عربي ژبه کې زده کړي.
- د لوست څخه مختلف سوالونه جوړ کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

په هره ژبه کې عددونه په دوه ډوله ویشل کیږي:

۱ – عادي عددونه. ۲ – ترتیبي عددونه

په عربي ژبه کې عادي عددونه په لاندې ډول دي

واحد، اثنان، ثلاثة، اربعة، خمسة، ستة... او داسې نور.

یعنې: یو، دوه، درې، څلور، پنځه، شپږ او داسې نور.

او ترتیبي عددونه په لاندې ډول دي:

الاول ، الثاني، الثالث، الرابع، الخامس، السادس.......او داسې نور

یعنې: لومړی، دویم، دریم، څلورم، پنځم، شپږم.........او داسې نور.

**د کلماتو معنا:** یتعلم: زده کوي.یکتبُ: لیکي. یتحدثُ: خبري کوي: یجتهدُ: کوښښ کوي.عماد: ستون.السادسُ: شپږم.

**الرابعُ:** څلورم.حمیدة: نیکو.الفائز.کامیاب.

**د لوست میتودونه:** نمونه یي قرائت، مناقشه یي.سوال او ځواب، یو کسیز اوډله ییز.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تباشیر، کاغذي تابلو.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې لـــه کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک دغه جمله ترجمه کولی شي؟ أين يقعُ بيتك؟<br>– څوک د دغه سوال ځواب په عربې ژبه کې ویلای شي؟ (أيـــن تأكـــل الطعام؟)<br>– د انګیزې پارول د نوي لوست د عنوان پیدا کولو لپاره.<br>– څوک د دغو حروفوڅخه یوه جمله جوړولی شي؟<br>(خ، ا، ل، د، ی، ک، ت، ب) | |
| ۳۰ دقیقې | – محترم ښوونکی د ځواب د لاسته راوړلو وروسته د نوي لوست عنـــوان چې (خالد يكتبُ) دی. د الله جل جلاله په نوم سره پیلوي.<br>– محترم ښوونکی لوست دوه ځلې په لوړ آواز سره لولي. لومړی وار زده کوونکي غوږ نیسي او دویم ځل له هغه سره یو ځای جملې تکـــراروي. ښوونکی دې ته متوجه وي که چیرې کوم یو غلطې وکړي نو اصـــلاح کوي یې.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپتیـــا سره ولولي او سختې کلمې یې له ځان سره یاد داشت کړي. بیا ښوونکی کلمات په تخته لیکي او معنا کوي یې.<br>– محترم ښوونکی له دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په سمه توګه ولولي او وروسته د لوست لومړی تمرین د ښوونکي په همکارۍ د سوال او ځواب په توګه اجراء کوي.<br>– محترم ښوونکی دویم تمرین په زده کوونکو تکراروي او لارښوونه ورته کوي چې ترتیبې عددونه حفظ کړي. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>– څوک کولای شي له لوست څخه یوه جمله په سمه توګه ولولي او معنا یې کړي؟<br>– څوک له لوست څخه درې مضارع فعلونه په تخته لیکلی شي؟<br>– څوک له لوست څخه ترتیبې عددونه په عربې ژبه کې ویلی شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست دریم تمرین چې د کتاب په (۴۴) مخ کې دی په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

**لوست: یوولسم (دویمه برخه)**

**سرلیک:** خالد یکتبُ.

**مخ:**

**وخت: ۴۵ دقیقې** (یو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- دقاف او کاف د تلفظ په فرق پوه شي.
- قمري او شمسي حروفونه وپیژني.

له مفردو کلمو څخه جمع جوړه کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د عربي ژبې حروف د (ال) په راوړلو سره په دوه ډوله ویشل کیږي:**

**لومړی:** شمسي حرفونه: **هغه حرفونو ته وايې چې که په هغې کې (ال) راوړل شي (لام) یې نه تلفظ کیږي. د شمسي حروفو تعداد څوارلسو ته رسیږي** (ت، ث، ص، ر، ت، ض، ذ، ن، د، س، ظ، ز، ش، ل) **د مثال په ډول: تراب: التراب**ُ.ثقب: الثقبُ.

**دویم:** قمري حرفونه: **قمري حروف هغه حروفو ته وايي چې که د (ال) لام د هغه په حروفو داخل شي تلفظ کیږي او لفظا په هغه حرف نه بدلیږي او د قمري حروفو تعداد هم څوارلسو ته رسیږي:**

**چې هغه دا دي:** (أ، ب، غ، ح، ج، ک، و، خ، ف، ع، ق، ي، م، ه)

**د مثال په توګه:** أمل: الأملُ.بقرة: البقرةُ.

**شمسي حروفو ته له دې امله شمسي وايي چې د شمس اول حرف د شمسي حروفو څخه دی.**

**او قمري حروفو ته هم پدې لحاظ قمري وايي چې د قمري حروفو اول حرف د قمري حروفو څخه دی او دا د تسمیه سبب په دغو کلمو کې دی.**

**د کلماتو معنا:** جیداً: ښه.البطاقةُ: کارت.حاسوب: کمپیوتر.درج المکتب: **د میز جعبه.**

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – ډله ییز او په یو کسیزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک ترتیبي عددونه له یو څخه تر لسو پورې په عربې ژبه کې ویلی شي؟ | |
| ۳۵ دقیقې | – محترم ښوونکی نوی لوست د الله جل جلاله په نوم سره پیل کوي او د لوست څلورم تمرین چې د کتاب په ۴۵ مخ کې دی زده کوونکو ته په مناسب آواز لولي چې د (ق او ک) د تلفظ په فرق ښه پوه شي بیا ښوونکی د تمرین کلمات په زده کوونکو د تلفظ د رعایت په خاطر تکراروي.<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین د سوال او ځواب په شکل په زده کوونکو اِجراء کوي او په خپله ورسره پوره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرین زده کوونکو ته په لاندې ډول حلوي. لومړی شمسي او قمري (ال) جدا جدا په تخته لیکي او د نمونې په ډول دوه مثالونه زده کوونکو ته حلوي.<br>ال شمسي ... ال قمري<br>السبورة ... العربية.<br>التلميذ ... القراءةُ.<br>وروسته زده کوونکي په دوه ګروپونو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې یو ګروپ دې قمري کلمات او بل ګروپ دې شمسي کلمات له لست څخه پیدا او هره کلمه په خپل ځای کې په تور رنګ ولیکي.<br>– محترم ښوونکی د اووم تمرین مفرد او جمع کلمات لولي او معنا کوي یې. بیا کلمات په زده کوونکو تکراروي او د اتم تمرین کلمات په تخته لیکي او ترجمه کوي یې. بیا ټول کلمات په لوړ آواز لولي او له زده کوونکو څخه غواړي چې له هغه سره یې تکرار کړي | |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې الواجب المنزلي په کور کې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

**لوست: دولسم (لومړۍ برخه)**

**سرليک:** أيام الأسبوع

**مخ:**

**وخت: ۴۵** دقيقې (يو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- لوست په سمه توګه ولولي او معنا يې کړي.
- د هفتې نومونه په عربې ژبه کې زده کړي.
- د مضارع فعل صيغې (جمع متکلم) وپېژني.
- د هفتې نومونه په عربې ژبه په خپلو منځو کې محاوره کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

که چيرې د لوست متن ته ښه ځير شو معلوميږي چې د اوونۍ د ورځو په نومونوکې واو استعمال شويدی او دغه حرف ته واو عطف وايي او د عطف کلمې وروسته برخه د وړاندې برخې سره تړي، يعنې که ماقبل اسم يې مرفوع وي ما بعد به يې هم مرفوع وي او که مجرور او منصوب وي مابعد به يې هم منصوب او يا مجرور وي، او د عطف واو د ټولو کلمو تر منځ رابطه پيدا کوي.

مثلاً: دلته وګورئ چې د السبت څخه وړاندې د يوم کلمه راغلي ده او دلته د يوم له کلمې څخه وړاندې (الاحد) او (الاثنين) نه دی راغلي بلکه ليکونکي د واو يوم په ذکر اکتفا کړې ده او د واو عاطفه وظيفه دا ده چې د اسماؤ او فعلونو د تکرار څخه مخنيوی کوي.

د واو عطف څخه برسيره نور حرفونه هم شته دي چې دغه وظيفه اِجراء کوي لکه (ثم، لکن، او، بل، حتی).

**د کلماتو معنا:** نرسمُ: رسموو.الاسبوعُ: اوونۍ.الاسبوعية، اوونيزه.اوقات الفراغ.د بيکارۍ وختونه.

**د لوست ميتودونه** :سوال او ځواب – تکرار – يو کسيز .

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير.

د لوست بهير:

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم دکورنۍ دندې له کتنې وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک دغه کلمات په جمع بدلولی شي؟<br>(تلمیذ، صف، سبورة) | |
| ۳۰ دقیقې | څوک د شمسي او قمري حرفونو څخه یو مثال ویلای شي؟<br>د انګیزې پارول د نوي لوست د عنوان پیدا کولو لپاره.<br>څوک ویلی شي چې یوه اوونۍ څو ورځې لري؟<br>محترم ښوونکی د ځواب ویلو څخه وروسته د نوي لوست عنوان چې (أيام الأسبوع) دی په توره تخته لیکي.<br>محترم ښوونکی لوست یو وار لولي او له زده کوونکو څخه غواړي چې د ده لوستلو ته غوږ ونیسي. بیا یې دویم وار لولي او له زده کوونکو څخه غواړي چې د ده سره یې یو ځای تکرار کړي. د زده کوونکو اشتباهات اصلاح کوي او بیا یوه یوه جمله د لوست څخه لولي او معنا کوي یې.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته دوه دقیقې وخت ورکوي چې لوست په چوپتیا سره ولولي او د مشکلو کلماتو لاندې کرښې وکاږي او ښوونکی هغه کلمات په تخته ولیکي او بیایې معنا کړي.<br>– محترم ښوونکی درې زده کوونکي د لوستلو لپاره انتخابوي او په هغوی لوست په لوړ آواز لولي او ترجمه کوي یې.بیا له دوه زده کوونکي څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او یو یې د اوونۍ نومونه په تخته ولیکي او دویم د هغو معنا ولیکي.<br>– محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرین دویم مثال په تخته حلوي:<br>– في الأسبوع (سبعة) أيام.<br>– نذهب اِلى المدرسة (ستة) ايام في الاسبوع.<br>نور مثالونه زده کوونکي په ډله ییزه توګه په خپلو کتابچو کې حل کوي. | |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>– څوک د اوونۍ ورځې په عربي ژبه ویلای شي؟<br>– څوک د مضارع دغه فعلونه معنا کولای شي؟ (نکتب، نرسـم، نزور)<br>– څوک دغه جمله په تخته لیکلی شي؟<br>– (نحافظ علی الوقت)<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته د لوست دویم تمرین دکورنۍ دندې په توګه ورکوي.<br><br>**د لوست پیغام:**<br>محترم ښوونکی باید زده کوونکو ته د اوونۍ د ورځو نومونه او لـه هغو څخه په سمه توګه استفاده کول شرح کړي او هغوی ته ورزده کړي چې هر زده کوونکی باید په اوونۍ کې مهال ویش ولري چې وختونه یې ضایع نه شي، ځکه چې د انسان عمر له وختونوڅخه جوړ شویدی او که موږ وغواړو چې خپل وخت ضایع کړو په حقیقت کې خپل عمر ضایع کوو. | |

**لوست:** دولسم (دويمه برخه)

**سرليک:** أيام الاسبوع.

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- د (س او ث) د حروفو تلفظ زده کړي.
- د اوونۍ د ورځو دنومونو په باره کې په خپلو منځو کې محاوره وکړي.
- مفردې کلمې په جمع بدلې او په جملو کې يې وکارولی شي؟

**د کلماتو معنا:** الشهر: مياشت.العطلةُ: رخصتي.السنوية: کلنۍ.العِشاءُ: ماخوستن.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب – يو کسيز او ډله ييزه –.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب – تباشير – تخته.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظيم او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تير لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د اوونۍ ورځې په عربي ژبه ويلی شي؟<br>– محترم ښوونکی نوی لوست د الله جل جلاله په نوم سره پيل کوي. | |
| ۳۵ دقيقې | – محترم ښوونکی د لوست دريم تمرين چې د «ث او س» سم لوستل اوتلفظ دی په زده کوونکو تکراروي، ځکه چې دوی د دې تورو سم تلفظ زده کړي او په توپير يې پوه شي.<br>– محترم ښوونکی د لوست څلورم تمرين چې د کتاب په (۴۹) مخ کې دی، د محاورې په شکل په زده کوونکو حلوي او خپله له دوی سره پوره مرسته کوي او تشويقوي يې.<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرين په تخته ليکي او معنا کوي يې. مفرد او جمع کلمات په لوړ آواز لولي او له زده کوونکو څخه غواړي چې دغه کلمات دې ورسره تکرار کړي.<br>– محترم ښوونکی د لوست د شپږم تمرين جملې په تخته ليکي او د پنځو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې په وار سره راشي او د تختې ليکل شوې جملې ولولي او هغه تصحيح کړي. ښوونکی ورسره مرسته کوي او صحيح جملې دا دي: | |

| | | |
|---|---|---|
| | - اذهبُ الى المدرسةِ صباحاً وارجع مساءً.<br>- اَعملُ في النهار و استريح في الليل.<br>- اَقرأُ الدرس في الفصل واكتب الواجب في البيت.<br>- ازور الاقارب يوم الجمعة و اذهب الى المدرسةِ يوم السبت.<br>- التلميذ يخرج من الفصل بعد خروج المعلم.<br>- محترم ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست د اووم تمرين جملې ولولي او په خپلو کتابچو کې يې وليکي.<br>- محترم ښوونکی د لوست اتم تمرين په زده کوونکو په دې ډول اجرا کوي چې زده کوونکي په دوو ګروپونو ويشي او هغوی ته لارښوونه کوي چې يو ګروپ د «الف او ب» کلمات او بل ګروپ د «ج او د» کلمات په جملو کې استعمال کړي.<br>- محترم ښوونکی د نهم تمرين تش ځايونه په مناسبو کلمو چې په قوسونو کې شته دي ډکوي.مثال:<br>- أقرا الدرس و اکتب الواجبات.<br>- اَستأذِنُ اولاً ثم ادخل الفصل.<br>- ما ذهبت الى المدرسةِ و لکن ساذهب ان شاء الله.<br>- اُصلى العشاءَ و استريح.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>- محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې تمرين (الواجب المنزلي) په کور کې حل کړي او خپله يو مثال حلوي مثال: نذهب الى المدرسة (ستة) أيام | ۵ دقيقې |

**لوست:** **دیارلسم (لومړی برخه)**

**سرلیک:** آداب الطریق.

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولولي او معنا یې کړي.
- په لاره د تللو آداب زده کړي.
- کلمات په جملو کې استعمال کړای شي.
- دجملو له منځ څخه دکلماتو معنا په خپل فکرسره راوباسي.
- (لا الناهیة) و پیژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

په عربي ژبه کې (لا) د دوو معناوو لپاره استعمالیږي:

۱ – لا د نفي په معنا – ب – لا د نهي په معنا.

اول ډول یې نافیه لا او دویم ډول ته یې ناهیة لا وایي، دواړه ډولونه (لا) د مضارع فعل په اول کې راځي.

هغه وخت چې نافیه لا په مضارع فعل کې داخلیږي په مضارع فعل کې د اعراب له پلوه تغییر نه راځي بلکه هغه مرفوع پاتي کیږي او که په هغه ناهیة لا داخله شي په هغه وخت کې مضارع فعل مجزوم کیږي، د فعل مضارع د جزم په حالت کې مفصل معلومات د نحوي د کتابونو څخه اخیستلای شئ.

**د کلماتو معنا:** الطریق: لار.القمامة: فاضله شیان او دهغو ټوکری.الاحجارُ: ډبرې.یرمي: ولي.یصرخُ: چېغې وهي.جانب الطریق: د لارې څنډه.

**د لوست میتودونه:** نمونه یي قرائت –سوال او ځواب – یو کسیز – تکرار او په چوپتیا سره لوستل.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک دغه کلمو ته جملې جوړولای شي؟ (اُکتب – اِقرأ)<br>– د انګیزې پارول د نوي لوست د عنوان د پیدا کولو لپاره.<br>– که وغواړو د (الطریق) او (آداب) کلمات سره یو ځای کړو چې ښه معنا ورکړي کومه کلمه یې اوله او کومه یې دویمه راوړو؟ | |
| ۳۰دقیقې | – محترم ښوونکی د سم ځواب د لاسته راوړلو وروسته د نوي لوست عنوان په ښه خط د تختې په سر لیکي (آدابُ الطریــق) او بیـــا زده | |

| | | |
|---|---|---|
| | کوونکي کتابونو ته متوجه کوي اونوی لوست د الله جل جلاله په نوم سره پيلوي.<br>– محترم ښوونکی لوست دوه ځلې په لوړ آواز لولي او په دويم وار له زده کوونکو څخه غواړي چې جملې ورپسي تکرار کړي. ښوونکی يې غلطياني اصلاح کوي. په دريم ځل ښوونکی لوست لولي،جملات يې معناکوي او مشکل کلمات يې په تخته ليکي.<br>– محترم ښوونکی له دريو تنو زد کوونکو څخه غواړي چې د لوست دوه دوه کرښې ولولي او معنا يې کړي. بيا له دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او له لا رښوونې سر سم يو يې دغه کلمات په تخته وليکي (القمامة، يزيل، و يقطعُ) او له بل زده کوونکي څخه وغواړي چې دغه کلماتو ته حرکتونه ورکړي.<br>– محترم ښوونکی د (لا الناهية) او نافيه په باره کې مختصر معلومات ورکوي او مثال راوړي.<br>محترم ښوونکی زده کوونکي په دوه ګروپونو ويشي او هغوی ته لارښوونه کوي چې لوست په خپلو منځوکې تکرار کړي او بيا د لوست لومړی تمرين په تخته زده کوونکو ته حل کړي.<br>يزيل، يبعد، يصرخُ، يصيح.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک لوست په سمه توګه ويلی شي؟<br>– څوک د (لا الناهية) او (لا النافية) په باره کې معلومات ورکولی شي؟<br>– څوک دغه جملې په تخته ليکلی شي (لا يصرخ).<br><br>**کورنۍ دنده :**<br>محترم ښوونکی د لوست دويم تمرين زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | ۱۰ دقيقې |

**لوست**: **دیارلسم** (**دویمه برخه**)

**سرلیک:** آداب الطریق.

**مخ:**

**وخت: ۴۵ دقیقې** (یو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- مفرد کلمات په جمع بدل کړای شي.
- د سوالونو مطابق ځواب ورکړي.
- الف ممدودة او الف مقصورة وپیژني.
- د (هل) په واسطه سوال جوړ کړي.
- (لا نافیه) په جملو کې استعمال کړی شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

په املاء کې د مقصوره او ممدوده الف پیژندل:

مقصوره الف په اِملاء کې هغه کوچنی الف دی چې د یاء په شکل لیکل کیږي خو الف تلفظ کیږي دمثال په توګه (بکی، شوی، روی، اِشتری، الردی، الفتی، مصطفی، موسی، بخاری، لدی، اولی، اولی) او داسي نور.

ممدودة الف: هغه الف ته وایي چې اوږد وي او اوږد لیکل کیږي د مثال په ډول (أما، اِلا، ما، لا، الربا، علیا، بقایا، احیا و تزیا) او داسي نور.

**د کلماتو معنا:** متی: څه وخت.هل: آیا.تعبُرُ: تیریږي.سُلة: توکری.جدول الماء: ویاله.الجسرُ: پل.نفق: تونل.اِشارات **المرور:** ترافیکي اِشارې.

**د لوست میتودونه:** مناقشه –سوال او ځواب – یو کسیز ډله ییز – تکرار.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب – تباشیر – تخته –.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک په عربي ژبه ویلی شي چې د لارې آداب څنګه رعایت کړو؟<br>– نوی لوست د الله جل جلاله په نوم سره پیل کوي. زده کوونکي خپلو کتابونو تــه متوجه کوي او د لوست دریم تمرین چې په (۵۲) مخ کې دی حلوي. | |
| ۳۰ دقیقې | – محترم ښوونکی د تمرین مفردې او جمع کلمې په دوه کرښو کې لیکي او بیا هغه په لوړ آواز لولي. د زده کوونکو څخه غواړي چې ورپسي یې تکرار کړي او بیــا تمرین د زده کوونکو په وسیله د سوال او ځواب په ډول کاروي. | |

| | | |
|---|---|---|
| | - محترم ښوونکی څلورم تمرین په دوو تنو زده کوونکو د سوال او ځواب په ډول د کتاب له مخې لولې اوپه دې توگه يې په نورو زده کوونکو هم عملي کوي، په دې خاطر چې د سوال او ځواب طريقه د دوی په ذهن کې په سمه توگه پاتي شي.<br>- محترم ښوونکی پنځم تمرين په دې ډول زده کوونکو ته حلوي چــې لــومړی د استفهاميه هل او نافيه لا په باره کې معلومات ورکوي او د هل څخه د سوال جوړلو طريقه او بيا هغې له ځواب ورکول په (لا)سره ور ته بيانوي او بيا زده کوونکو تــه لارښوونه کوي چې په دوه کسيزه توگه په خپلو منځو کې د سوال او ځواب پــه ډول کار وکړي.<br>- محترم ښوونکی د شپږم تمرين په حل پيل کوي او لومړی زده کوونکو ته د ممدودة الف او مقصوره الف په باره کې له مثالونو سره لنډ معلومات ورکوي او بيـا زده کوونکي په دوو گروپونو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې يو گروپ هغه کلمات چې په ممدودة الف ختميږي او بل گروپ هغه کلمات چې پــه مقصــوره الــف ختميږي د چوکاټ له منځ څخه انتخاب او په دوه کرښو کې په تخته وليکي.د مثال په ډول:<br>ممدودة الف — مقصورة الف<br>عصا — القی<br>قفا — جری<br>- محترم ښوونکی د اووم ټولگي جملات په تخته ليکي اوترجمه کوي يــې. لــه زده کوونکو څخه غواړي چې د ښه کار او عمل په مخ کې سمه نښه(✓) کيږدي:<br>۱ – زه چټلي په عامه لاره کې اچوم (×)<br>۲ – زه د کور نظافت او پاکوالي ته پاملرنه کوم (✓)<br>۳ – گلونه له منځه وړم او ډبرې په لاره کې اچوم (×)<br>۴ – زه چې د لارې څخه تيريږم ناستو خلکو ته سلام اچوم (✓)<br>- محترم ښوونکی د لوست د اتم تمرين کلمات په تخته ليکي او ترجمه کوي يې. له زده کوونکو څخه غواړي چې کلمات له معنا سره په خپلو کتابچو کې وليکي.<br><br>**مثال:** الرصيف: پياده لار.نفق: تونل.المزبلةُ: د خځلو ټوکری.الجسرُ: پل.جدول الماء: گودر.<br><br>**کورنۍ دنده:** محترم ښوونکی تمرين الواجب المنزلي زده کوونکو ته دکورنۍ دندې په توگه ورکوي او يو مثال دوی ته حلوي: نحنُ نعيشُ (تحتَ) السماء و (فوق) الارض. | ۱۰ دقيقې |

**لوست: څوارلسم (لومړۍ برخه)**

**سرليک:** فصل الربيع.

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- لوست په سمه توګه ولولي او ترجمه يې کړي.
- د مضارع فعل په صيغه چې تثنيه ضمايرو ته منسوبه وي وپيژني.
- د کال فصلونه په عربي ژبه ووايي.
- د متصل ضمايرو په باره کې اِبتدائي معلومات پيدا کړي.

د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:

ضماير په عربي ژبه کې د منفصل (ناپيوست) اومتصل (پيوست) په ډول استعماليږي، د منفصله ضمايرو په باره کې پخوا معلومات ورکړل شوي وو په دې لوست کې د متصل ضمايرو په باره کې ابتدائي معلومات ورکول کيږي.متصل ضماير د فعلونو، حروفو او اسماؤ سره پيوست راځي خو په هر صورت يو له بل سره توپير لري. په دې لوست کې له مضارع فعل څخه چې له ضمايرو سره پيوست راځي بحث کوو.

که چېرې ضمير مفرد مذکر غايب يا مخاطب وي په دې وخت کې ضمير په فعل کې نه معلوميږي مثال: هو يکتب، أنت تکتب.په عمومي توګه هغه ضماير چې په فعلونو کې داخليږي بايد په آخر کې يې ښکاره شي نه په اول کې، که ضمير تثنيه نه وي او په مضارع فعل کې داخليږي په صورت کې الف ښکاره کيږي مثال:تکتبان، ترسمان، يرسمان.که ضمير جمع مذکر ته استعماليږي په مضارع فعل کې د واو په شکل ښکاره کيږي مثال: يکتبون – تکتبون.که ضمير مفرد مؤنث او يا مخاطب وي د مضارع فعل په آخر کې د ياء په شکل راځي مثال: تکتبين – ترسمين.

که ضمير د جمع مؤنث وي په هغه صورت کې په مضارع فعل کې د مفتوح نون په شکل راځي. د مثال په ډول: يکتبن، تکتبن.په دې لوست کې د اتم تمرين دغه قاعده د تطبيق وړده.

**د کلماتو معنا:** الربيع: پسرلی.حقول: کشتونه.تتفتح: غوړيږي.مظلة: چترۍ.
تُغَرِّدُ: چنيږي.الحان: اوازونه.خفيفة: نازک.الصيف: دوبی.الخريف: منی.الشتاءُ: ژمی.

**د لوست ميتودونه:** نمونه يي قرائت –سوال او ځواب – يو کسيز او تکرار..

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب – تخته، تباشير.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک دغه کلمې ترجمه کولای شي؟<br>– المزبلةُ، الرصیف، نفق، المحطةُ، السلةُ.<br>– د انګیزې پارول دنوي لوست د عنوان پیدا کولو لپاره.<br>– څوک ویلی شي چې پسرلي ته په عربي ژبه کې څه وایي؟ | |
| ۳۰ دقیقې | – محترم ښوونکی د سم ځواب د اوریدو وروسته د نوي لوست عنوان چې (الربیع) دی په تخته لیکي.<br>– محترم ښوونکی لوست یو وار په لوړ آواز لولي او زده کوونکو تــه وایي چې لوستلو ته غوږ ونیسي. بیا دویم ځل لوست جمله په جمله لولي او له زده کوونکو څخه غواړي چې دغه جملې ورسره تکـــرار کړي. بیا لوست په چوپتیا سره لولي او مشکل کلمات له ځان سره یاد داشت کوي.<br>– محترم ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې یاد داشت شــوې کلمې په تخته ولیکي او ښوونکی په خپله هغه معنا کوي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر یو پــه وار لوست ولولي.<br>– محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرین چې په (۵٦) مخ کې دی په تخته لیکي او معنا کوي يې. بیا له زده کوونکو څخه غواړي چــې پوښتنو ته ځوابونه ووایي. | |
| ۱۰ دقیقې | – **ارزونه:**<br>– څوک د (فصل الربیع) معنا ویلی شي؟<br>– څوک د (تخضر الارضُ) جمله له ترجمې سره په تخته لیکلی شي؟<br>– څوک دغه جمله (غوټۍ کوي او شنه کیږي) په عربي ژبــه ویــلای شي؟ | |

| | | |
|---|---|---|
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته وظیفه ورکوي چې د لوست دویم تمرین چې د کلماتو په واسطه د تشو ځایونو ډکول دي په خپلو کتابچو کـــې ولیکي. تش ځایونه له قوسونو څخه په مناسبو کلمو ډک کړي. ښوونکی یو مثال حلوي (فصل الشتاء) (بارد) او (فصل الربیع معتدل).<br><br>**د لوست پیغام:**<br>محترم ښوونکی د فصلونو په باره کې زده کوونکو ته په لوست رڼا اچوي، د پسرلي سمسورتیا د الله جل جلاله د قدرت ښکاره کول دي او هر فصل ځانته ځانګړتیاوې لري.ښوونکی د فصلونو د تغییراتو په باره کې زده کوونکو تـــه معلومات ورکوي او په دې تغییراتو کې د اِلهي قدرت نښې نښانې هغوی تـــه بیانوي. | |

**لوست: څوارلسم (دويمه برخه)**

**سرليک:** فصل الربيع.

**مخ:**

**وخت: ۴۵** دقيقې (يو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- د کلماتو معنا له جملې څخه درک کړي.
- ماضي فعل په مضارع بدل کړي.
- د مد حروف و پيژني او سم يې تلفظ کړي.
- تثنيه ضماير په مضارع فعل کې داخل کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

که چيرې وغواړو فعل ماضي په مضارع تبديل کړو. اول بايد د هغه په سر کې د (أنيت) د حروفو له جملې څخه يو حرف يعنې (همزه، نون، ي، تاء) راوړو او له هغې وروسته د فعل په آخر کې (رفع حرکت ( ضمه) راوړو. مثال: ضربَ، يضربُ، کتبَ، يکتبُ، جلَسَ، يجلسُ.

**د کلماتو معنا: تغنّي**: آوازونه وايي.نضجت، پخې شوې.لِمَ: ولې.الثلجُ: واوره.البردُ: ږلى.البئرُ: څاه..عين الماء: د اوبو چينه.السحابُ: وريځ.الرياحُ: بادونه.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب – يو کسيز او ډله ييز.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب – تخته – تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتني او د کورنی دندې له کتلو څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د کال فصلونه په عربي ژبه ويلی شي؟<br>– محترم ښوونکی د لوست دريم تمرين چې په (۵٦) مخ کې دی پــه زده کوونکو حلوي او هغوی ته لارښوونه کــوي چــې د کلمــاتو مناسبې معناوې له قوسونو څخه پيدا او بيا يې په خپلو کتابچو کــې وليکي.<br>– محترم ښوونکی څلورم تمرين چې په (۵۷) مخ کــې دی پــر زده کوونکو حلوي، د تمرين جملې په تخته ليکي او ماضي اُفعا ل پــه مضارع سره بدلوي:<br>– يجري الماءُ في النهر.<br>– يلعبُ الطلابُ کرة القدم. | د دريم تمرين حل:<br>۱ – تُغَنّي.<br>۲ – أصوات.<br>۳ – المزارعُ. |

| | | |
|---|---|---|
| | - تنضج الثمارُ في الحديقةِ.<br>- تفرح التلميذات بنجاحهن.<br>بیا زده کوونکو ته وايي چې جملې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- محترم ښوونکی پنځم تمرين د حرف مد د تلفظ په مراعاتولو سره په سمه توګه زده کوونکو ته لولي او هغه کلمات پــه زده کوونکــو تکراروي. بیا د تمرين کلمات زده کوونکو ته د اِملاء په توګه وايي.<br>- محترم ښوونکی د شپږم تمرين نامرتبي کلمې ترتيبوي او يوه جمله او نور مثالونه د تختې په سر په زده کوونکو ليکي او دوی سره پـــوره مرسته کوي.مثال:<br>تکثر الأمطار في الربيع.<br>- محترم ښوونکی څو تنو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چـــې اووم تمرين ولولي او ترجمه يې کړي. ښوونکی ورسره پوره مرسته کوي اودوی تشويقوي او بیا دغه تمرين د سوال او ځواب په ډول په زده کوونکو اِجراء کوي.<br>- محترم ښوونکی د مضارع مفرد فعلونه په تثنيه صيغه تبـــديلوي او د نمونې په ډول دوه مثالونه زده کوونکو ته حلوي.<br>- مثال: هما ترسمان – هما تقرءان.او نور مثالونه پـــه زده کوونکـــو باندې کار کوي.<br>- محترم ښوونکی اتم تمرين زده کوونکو ته لولي اومعنا کوي يې.<br>الثلجُ:واوره.البئرُ: څاه.الجداولُ: ويالې.الرياحُ: بادونه. عين الماءِ: چينه. الرعدُ و البرقُ: تالنده او بريښنا –او له زده کوونکو څخه غواړي چې کلمات له معنا سره په خپلو کتابچو کې وليکي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی د (الواجب المنزلي) تمرين زده کوونکو ته د کورنۍ دنـــدې په توګه ورکوي او د نمونې په ډول يو مثال له افعالو څخه په جملـــه کـــې استعمالوي.<br>يصبحُ الجو معتدلا في فصل الربيع. | ۵ دقیقې |

**لوست: پنځلسم(لومړۍ برخه)**

**سرليک:** خدمة الوطن.

**مخ: ۵۹ – ۶۰**

**وخت: ۴۵ دقيقې** (يو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- لوست په سمه توګه ولولي.
- لوست سم ترجمه کړای شي.
- متصل غايب ضماير او مذکر او مؤنث (هُـــ – ها) و پيژني.
- د مفرد متکلم ضمير (أنا) په جملو کې وپيژني.
- د موصوله اسماوو يو تعداد و پيژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

اول: ضماير

په دې لوست کې ګورو چې أنا هغه ضمير دی چې (مذکر او مؤنث) متکلم ته اِستعماليږي. که وغواړو ضمير مفرد مذکر مخاطب ته استعمال کړو (أنت) وايو او مفرد مخاطب مؤنث ته (أنتِ) د تاء په کسره کې استعمالوو او په همدې لوست کې متصل ضماير (هـــ – ها) هم لولو. که چيرې وغواړو د يو شي نسبت غايب سړي ته ورکړو دغه ضماير په آخر کې مذکر شخص ته (ه ُ) او مؤنث ته يې (ها) اضافه کوو او وايو کتابهُ – کتابها.و طنهُ – و طنهاَ.

ثانيا: أسماء موصولة:

اسماء موصولة هغه اسماء دي چې له جملې څخه وروسته په معين شي يا شخص دلالت کوي او هغه جمله چې له هغې څخه وروسته راځي هغې ته صلة الموصول وايي. د موصول اسماء بعضې وختونه مفرد ته استعماليږي او يو تعداد يې تثنيه او جمع ته هم اِستعماليږي.د اسماء موصولة مهمې أجزاوې په لاندې ډول دي (الذي) د مفرد (مذکر) لپاره، التي دمفرد (مؤنث لپاره) اللذان او اللذَين د تثنيه مذکر (لپاره) اللتان او اللتين د تثنيه مؤنث لپاره «الذين» د جمع مذکر لپاره اللاتي – اللواتي اللائي دجمع مؤنث لپاره. من د (عاقل) لپاره او ما د غير عاقل لپاره.

**د کلماتو معنا:** اُحبُّ: مينه لرم.اُخدمُ: خدمت کوم.الذي: هغه څوک.الوطن: وطن.تربی.روزنه کوي.شعبي: زما ملت.

الاجيال: نسلونه.

**د لوست ميتودونه:** نمونه يي قرائت.سوال او ځواب.يو کسيز او ډله ييز.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | - محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلوڅخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>- څوک دغه جمله په عربي ژبه ویلی شي؟<br>- (په پسرلي کې مرغان سندرې وایي)<br>- د انګیزې پارول د نوي لوست د عنوان د پیدا کولو لپاره.<br>- څوک کولای شي دغه حرفونه ترکیب کړي؟ (خ، د، م، ة، ا، ل، و، ط، ن) | |
| ۳۰ دقیقې | - محترم ښوونکی لومړی لوست په لوړ آواز لولي او زده کوونکو ته وایي چې د ده لوستلو ته غوږ ونیسي. بیا دې ورپسې جملې تکرار ولولي او وروسته دې لوست په چوپتیا سره ولولي. مشکل کلمات دې له ځان سره یاد داشت کړي.<br>- محترم ښوونکی یاد داشت شوي کلمات له معنا سره په تخته لیکي او بیا لوست په څو تنو زده کوونکو په تکراروي.<br>- محترم ښوونکی لوست د مناقشې په ډول لولي او معنا کوي یې، او بیا د مناقشې په ډول نویو کلماتو ته جملې جوړوي.<br>- محترم ښوونکی لومړی د ضمایرو او موصوله اسماء په باره کې مختصر معلومات ورکوي او بیا د لوست لومړی تمرین زده کوونکو ته په دې ډول حلوي چې اوله جمله یې لولي او وروسته له زده کوونکو څخه غواړي چې مترادفي کلمې چې د قوسونو په منځ کې ورکړی شویدي پیدا کړي او د ورکړ شوو کلماتو مخې ته یې ولیکي چې دا دي:<br>- الأجيال النسل<br>- الشعب سكان البلد. | |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>- څوک د الذي کلمې معنا ویلی شي؟<br>- څوک د (اخدم شعبي و وطني) جمله په تخته لیکلی او معنا کولی شي؟<br>- څوک د وطنهُ او وطنها د کلماتو تر منځه توپیر کولی شي؟ | |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی د لوست دویم تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او خپله یو مثال د نمونې په ډول حلوي.<br>– نعم ، اُحب وطني.<br><br>**د لوست پیغام:**<br>محترم ښوونکی باید زده کوونکو ته د وطن دوستۍ په هکله معلومات ورکړي. وطن دوستي هغوی ته ورروپیژني او هغوی پوه کړي چې وطن دوستي فقط په ژبه نه پالل کیږي بلکې په عملي ډول باید کار او فعالیت وکړو. | |

**لوست**: **پنځلسم** (**دوه یمه برخه**)

**سرلیک:** خدمة الوطن.

**مخ:** ٦٠ – ٦٢

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د مؤنث اسم موصول (التي) و پيژني.
- د (ز – ذ) د تلفظ په فرق پوه شي.
- ځان په عربي ژبه معرفي کړي.

**د کلماتو معنا:** الفُسحةُ: تفریح.مدیریة: ولسوالي.الشارع.سړک.الرقم.شماره.

**د لوست میتودونه:** مناقشوي، سوال او ځواب، یو کسیزه او ډله ییز.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکو فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي: | |
| ۳۰ دقیقې | – څوک د دغې سوال ځواب په عربي ویلای شـي؟ (هـل تحـبُ وطنک).<br>– محترم ښوونکی لومړی د الذي او التي د موصول اسم او د هغه فرق زده کوونکو ته بیانوي او بیا دریم تمرین د زده کوونکو په مشارکت حلوي، لومړی جملې په تخته لیکي او بیا تش ځایونه یې په مناسـبو کلمو ډکوي.<br>۱ – المعلم الذي، ۲ الأمُ التي، ۳ الفلاح الذي.او زده کوونکـو تـه لارښوونه کوي چې جملات په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– محترم ښوونکی د څلورم لوست نا مرتبه کلمې د تختې په یوه خوا لیکي او د زده  کوونکو څخه غواړي چې د نا مرتبه کلمو څخـه مفیده جملې جوړې کړي.<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین په تخته زده کوونکو ته داسې حلوي.<br>أنت تقرأ الدرس جیداً.<br>أنت تذهب اِلی المدرسةِ. | |

| | | |
|---|---|---|
| | أنت تلعبُ في الفسحةِ.<br>أنت تكتب الواجب.<br>او زده کوونکو ته د ضمایر متکلم او مخاطب فرق او د هغه تأثير چې په جملو کې راځي بيانوي.<br>- محترم ښوونکی شپږم تمرين چې د (ز – ذ) تلفظ دی زده کوونکو ته په لوړ آواز لولي او بيا يې پر هغوی تکراروي څکه چې دوی د دې حروفو دتلفظ او د هغه په فرق په سمه توګه پوه شي.<br>- محترم ښوونکی اووم تمرين د سوال او ځواب په ډول په زده کوونکو باندې عملي کوي او هر څوک د خپل ملګري سره د سوال او ځواب په ډول اووم تمرين حلوي.<br>- محترم ښوونکی د اتم تمرين مفردې کلمې په تخته ليکي او د زده کوونکو په واسطه د مناقشې او مشارکت په ډول يې جمع پيدا کوي او د مفردو کلماتو مخ ته ليکي او بيا د غه کلمات په زده کوونکو تکراروي چې د دوی په ذهن کې په سمه توګه ځای ونيسي.<br>- محترم ښوونکی نهم تمرين د اووم تمرين په ډول په زده کوونکو عملي کوي او د هغوی څخه غواړي چې ځان په عربي ژبه کې معرفي کړي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی د (الواجب المنزلي) تمرين زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او خپله يو مثال دوی ته د نمونې په توګه حلوي: اجتهدُ في دروسي حتى أنفع الوطنَ. | |

**لوست: شپاړسم (لومړۍ برخه).**

**سرلیک:** الحدیقةُ.

**مخ: ٦٣ – ٦۴**

**وخت: ۴۵ دقیقې** (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

– لوست په سمه توګه ولولي او معنا یې کړي.

– د سبزیجاتو او میوو نومونه په عربي ژبه زده کړي.

– د (ح – هــ) د تلفظ په توپیر پوه او هغه سم تلفظ کړي.

– یو اسم بل اسم ته مضاف کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

اولاً: د تعجب د علامو شناخت:

که په دې لوست کې دقت وکړئ درته معلومه به شي چې د بعضو جملو په پای کې دغه علامه (!) راغلې ده دغې علامې ته د تعجب علامه، ندائیه وایي او دغه علامه د تأثر، تشویق او ترغیب او د تخویف او تحذیر او د خوشحالۍ او د اِستغاثې او مرستې غوښتلو او د غم او آرزوګانو د اظهار او تحقق په خاطر اِستعمالیږي.

ثانیاً: د مضاف او مضاف اِلیه پیژندل:

یو تعداد اسماء دي چې د اضافت له سببه مجرور کیږي او اِضافت هغه دی چې یو اِسم بل اِسم ته د حرف جر د تقدیر نسبت پیدا کوي لکه: غلام زید – کتاب محمد – یعنې غلام دې زید او کتاب دې محمد او د نحو په اصطلاح کې هغې ته مضاف او مضاف اِلیه وایي، په دې ډول چې لومړي اِسم ته مضاف او دویم ته مضاف اِلیه وایي.

**د کلماتو معنا: تعال:** راشه.بذور: دانې.حلو: خوږ.مُر: تریخ.یحکي: حکایت کوي.نغرسُ: کرو.تنبت: شین کیږي.

الذُّ: ډیر خوږ.

**د لوست میتودونه:** نمونه یي قرائت – سوال او ځواب – یوکسیز او په ډله ییزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي** – کتاب – تخته – تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنی دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک ځان په عربي ژبه معرفي کولای شي؟<br>– د أنګیزې پارول د نوي لوست د عنوان پیدا کولو لپاره.<br>– څوک ویلای شي چې با غ ته په عربي ژبه کې څه وایي؟ | |
| ۳۰ دقیقې | – محترم ښوونکی د سم ځواب د لاسته راوړلو وروسته د نوي لوست عنوان چې (الحدیقةُ) دی د تختې په مخ لیکي او زده کوونکي کتابونو ته متوجه کوي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست په مناسب آواز لولي او په زده کوونکو یې تکراروي. بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپتیا سره ولولي او مشکل کلمات له ځان سره یاد داشت کړي. بیا په خپله هغه کلمات په تخته لیکي او معنا کوي یې.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لومړی تمرین په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا په ډله ییزه توګه د لوست څخه په مرسته هغه حل کړي.<br>– محترم ښوونکی د تعجب او ندا د علامې په باره کې زده کوونکو ته لنډ معلومات له اِضافي معلوماتو څخه ورکوي. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>– څوک د (نزرع او نغرسُ) کلمات په تخته لیکلی او معنا کولای شي؟<br>– څوک د (أشجار – أزهار او بذور) دکلماتو مفرد ویلای شي؟<br>– څوک د دغه سوال ځواب په عربي ژبه ویلای شي؟ (ولې سعید د مڼو او انګورو بوټي خوښوي)<br><br>**د لوست پیغام:**<br>د محترم ښوونکي څخه هیله کیږي چې زده کوونکو ته د میوه لرونکو ونو د کینولو په هکله رڼا واچوي او هم د سبزیجاتو د کرلو او له هغې څخه د ګټې اخستلو لنډ معلومات ورکړي، ځکه چې میوه لرونکي ونې او سبزیجات د هیواد غذایې برخه غښتلې کوي. همدارنګه له بلې خوا د | |

| | | |
|---|---|---|
| | اکسیجن د تولید سبب. کیږي.مورږ باید خپل اولادونه داسې تربیه کړو چې هیواد ته د یو مفید غړي په توگه ثابت شي تل د پرمختیا په فکر کې وي، او خپل هیواد او د هیواد راتلونکې ته متوجه وي.تل د هیواد د ترقۍ په فکر کې و اوسي له هر فرصت څخه خپل وطن ته گټه ورسوي، که هغه د بوټو کښېنول وي یا کوم بل کوچنی او جزئي کار.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی د لوست دویم تمرین چې د قوسونو څخه د مترادفـــو کلمو پیدا کول دي زده کوونکو ته دکورنۍ دندې په توگه ورکـــوي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي. | |

**لوست**: **شپاړسم (دویمه برخه)**

**سرلیک:** الحدیقةُ.

**مخ:** ٦۴ – ٦٦

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

– د مطالبو په باره کې په عربي ژبه په خپلو منځو کې محاوره وکړای شي.
– د (ح او هـــ) سم تلفظ وکړای شي.
– مضاف او مضاف اِلیه و پیژني.
– د مضارع فعل مفرد او مخاطب و پیژني.

**د کلماتو معنا:** هل لکم: آیا تاسې لره.أشُمُّ: بویوم.البطیخُ: هندوانه.الجوز: چهارمغز.العدسُ: نسک، دال.

**د لوست میتودونه:** مناقشه یې سوال او ځواب – ډله ییز – یو کسیز

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې،د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د دغې کلمې مترادفې کلمې په عربي ژبه ویلای شي؟ (فعال – لذیذ – أحضر) | |
| ۳۰ دقیقي | – محترم ښوونکی نوی لوست د الله جل جلاله په نوم پیل کوي.<br>محترم ښوونکی دریم تمرین زده کوونکو ته لولي او د هغې معنا او مفهــوم د سوال او ځواب په ډول په زده کوونکو عملي اِجراء کوي. بیا د څلورم تمرین په حل پیل کوي او په دې تمرین کې چې د (ح – ه) سم تلفــظ دی پـــه زده کوونکو باندې عملي کار کوي تر هغې پورې چې دوی سم تلفظ او د هغې په توپیر پوه شي.<br>محترم ښوونکی د پنځم تمرین په حل شروع کوي او زده کوونکي په دوه ډلو ویشي. زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د الف ستون درې کلمې د ب لـــه ستون سره یو ځای کړي او وروسته د هرې جملې معنا او مفهوم د مناقشې پـــه ډول په زده کوونکو وو ایي او ځان ډاډه کړي زده کوونکي تشویقوي او مرسته ورسره کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرین زده کوونکو ته د اِملاء په ډول وایي او زده کوونکې جملې په خپلو کتابچو کې لیکي او ښوونکی د | |

| | | |
|---|---|---|
| | هغوی اشتباهات اصلاح کوي.<br>– محترم ښوونکی د اووم تمرین کلمات په تخته لیکي او دوه مثالونه د نمونې په ډول زده کوونکو ته حلوي.مثال: (المعلم – سیارة) هــذه سیارةُ المعلم.<br>(العمل – الوقت) هذا وقت العمل او نور مثالونه يې په زده کوونکو حلوي او کوښښ کوي چې په هره جمله کې مضاف او مضاف الیــه وي. پــدې هکله زده کوونکو ته معلومات ورکوي او له دوی څخه غواړي چې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– محترم ښوونکی اُتم تمرین زده کوونکو ته لولي او بیا له دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې دغه کلمات ولولي او نور يې له دوی سره تکرار کړي. د تمرین د کلماتو معنا په دې ډول ده:<br>الرُمان: أنار.التمرُ: وچه خرما.البرتقال: مالتي.الجوز: چار مغــز.البطــيخُ: هندوانه.التین: انځر.الخیار: بادرنګ، البطاطس: الوګان. (کچالو) العدسُ: نسک، دال.الطَماطمُ: بانجان رومي.البصلُ: پیاز.الثومُ: اوږه.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی د لوست نهم تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او ورڅخه غواړي چې خبري جملې په استفهامي او سوالیې بدلې کړي. | ۵ دقیقې |

**لوست: اوولسم (لومړۍ برخه)**
**سرلیک:** الثعلبُ الطبیبُ.
**مخ:** ۶۷
**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)
**موخې:**
**زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولولي، معنا یې کړي او ویې لیکي.
- باید د تعجب په تطبیقي علاماتو پوه شي.
- د مؤنث ضمیر (ساکنه تا) د أفعالو سره یو ځای کړي.
- فعلیه او اِسمیه جملې وپیژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**
په عربي ژبه کې جمله په دوه برخو ویشل کیږي چې یوې ته یې اسمیه او بلې ته فعلیه وایي:
اسمیه جمله هغه جمله ده چې په اسم سره شروع کیږي لکه: الثعلبُ وقف – الدجاجةُ وقفت.
فعلیه جمله هغې جملې ته وایي چې په فعل سره شروع کیږي. په دې لوست کې ډیرې جملې په فعل سره شروع شویدي لکه: مرضت دجاجة.مشی الثعلبُ.نفرَ الثعلبُ.لبث الثعلبُ.
که چیرې جمله په اسم شروع شوې وي اسم ته مبتداء وایي او هغه کلمه یا جمله چې د مبتدا معنا پوره کولی شي هغې ته خبر وایي.او که چیرې جمله په فعل شروع شوې وي هغې جملې ته فعل او فاعل وایو او د فعل یوه علامه دا ده چې د فعل ماضي په پای کې تاء تانیث ساکنه داخلیږي او هغه پدې معنا چې د فعل په پای کې تاء تانیث ساکنه داخله شي د هغې فعل فاعل مؤنث وي لکه: کتبت فاطمةُ.
**د کلماتو معنا:** حظیرة: غوجل،طبیله. معطف: کوټ. هدوء: ارام. سماعة: د معاینه کولو آله (ستاتسکوب) ثعلب: ګیدړ.فحصني: نومعاینه یې کړم. اُنظر: وګوره.وراءک: ستا شا ته.التفت: په توجه سره مخ اړول.نحوه: د هغې په طرف.**هرب:** و تښتیده.جنب: څنګ.
**د لوست میتودونه:** نمونه یې قرائت – سوال او ځواب – تکرار – مناقشې.
**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.
**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی وروسته له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د (الواجب المنزلي) د معنا په باره کې معلومات ورکولای شي؟<br>– د أنګیزې پارول د نوي لوست د عنوان دپیدا کولو لپاره.<br>– کوم حیوان په چالاکۍ او مکارۍ مشهور دی؟ | |

| وخت | فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ۳۰ دقیقي | – محترم ښوونکی د سم ځواب د لاسته راوړلو وروسته د نوي لوست عنوان چې (الثعلبُ الطبیب) دی په ښه خط لیکي. بیا نوي لوست په یو وار لولي او له زده کوونکو څخه غواړي چې د ده لوستلو ته غوږ شي. بیا په دویم ځل لوست لولي او زده کوونکو ته وایي چې په ده پسې لوست تکرار کړي.<br>– محترم ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په چوپتیا سره ولولي او مشکل کلمات له ځان سره یاد داشت کړي. وروسته ښوونکی مشکل کلمات په تخته لیکي اومعنا کوي یې.<br>– محترم ښوونکی لوست په زده کوونکو باندې تکراروي او د معنا او مفهوم په باره کې یې له زده کوونکو سره مناقشه کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرین په زده کوونکو کار کوي او د تمرین سوالونه په تخته لیکي ځوابونه یې له لوست څخه په ګټې اخیستنې ورکوي. ښوونکي له دوې سره د ځواب موندلو په وخت کې پوره مرسته کوي او دوی تشویقوي. | |
| ۱۰ دقیقي | **ارزونه:**<br>– څوک د لوست متن په سمه توګه لوستلای او معنا کولای شي؟<br>– څوک دغه جمله په تخته لیکلی او د هغې معنا توضیح کولای شي؟ (لَبِس الثعلبُ معطفاً أبیض).<br>– څوک ویلای شي چې (نامت او مرضت) څه ډول فعلونه دي؟<br><br>**د لوست پیغام:**<br>محترم ښوونکی د حیله او نیرنګ د أضرارو په باره کې زده کوونکو ته معلومات ورکوي. هغوی پوهوي. چې د ځمکې په مخ هم د ګیدړ په شان انسانان شته.چې له حیلې، چل او فریب پرته یې بل کار نه وي باید انسانان په ژوند کې هوښیارو اوسي او فریب و نه خوري. | |
| ۵ دقیقي | **کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی زده کوونکوته کورنۍ دنده ورکوي چې د لوست متن په خپلو کتابچو کې ولیکي او مشکل کلمات معنا او په جملو کې یې اِستعمال کړي. | |

**لوست:** **اوولسم** (**دويمه برخه**)

**سرليک:** الثعلبُ الطبيب.

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- د (ت) او (ط) سم تلفظ زده کړي.
- د لوست د مطالبو په اساس محاوره وکړي.
- مفرد کلمات په جمع تکسير سره تبديل کړي.
- د فعليه او اِسميه جملو په سمه توګه توپير وکړای شي.

**د کلماتو معنا:** الغداء: د غرمې ډوډۍ.صداع.د سر درد.هرب: و تښتيده. مع من: له چا سره.الغزال.هوسۍ.النمرُ: پړانګ.الحمارُ الوحشي: ځنګلي خر.

**د لوست ميتودونه:** مناقشه – سوال او ځواب – ډله ييزه سيالي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي د تنظيم او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د نير لوست ارزونه کوي.<br>– د (الثعلب الطبيبُ) عبارت څه معنا ورکوي؟<br>– نوي لوست د الله جل جلاله په نوم پيل کوي. | |
| ۳۰ دقيقې | – محترم ښوونکی دريم تمرين چې د (ت او ط) سم تلفظ دی زده کوونکو ته لولي. د دې تورو رعايت زده کوونکو ته ښيي او په دوی يې تکرار وي چې دوی د حرفونو سم تلفظ او توپير وپيژني.<br>– محترم ښوونکی څلورم تمرين په دې ډول زده کوونکو ته حلوي او تش ځايونه يې ډکوي.<br>– لِيستُ، شربتُ، أكلتُ، ذهبتُ.<br>– محترم ښوونکی پنځم تمرين د سوال او ځواب په شکل په زده کوونکو عملي کار کوي او مشکل کلمات معنا کوي. بيا له دوو تنو زده کوونو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او يو يې سوال او بل يې ځواب ووايي.<br>– محترم ښوونکی د شپږم تمرين مفرد کلمات په تخته ليکي او له زده | |

| | | |
|---|---|---|
| | کوونکو سره په مناقشه د دې کلماتو جمع پیدا کوي او د کلماتو مخ ته یې لیکي. بیا دغه کلمې په لوړ آواز لولي او د زده کوونکو څخه غواړي چې ورپسې یې تکرار کړي او وروسته زده کوونکو ته وایي چې جمع کلمات په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست څخه ګټه واخلي او د لوست اووم تمرین کلماتو ته جملې جوړې کړي او پدې هکله ورسره پوره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اتم تمرین چې د لغـــاتو ذخیـــره ده زده کوونکو ته لولي او معنا کوي یې.<br>الدبُّ:ایږه.القردُ: بیزو (شادي) النمرُ:پړانګ.الغزالُ: هوسۍ.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی نهم تمرین چې (الواجب المنزلي) دی زده کوونکو ته دکورنۍ دندې په توګه ورکوي چې مناسب کلمات د قوسینو له مـــنځ څخه واخلي او په تشو ځایونو کې یې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

**لوست: اتلسم (لومړی برخه)**

**سرلیک:** الفیل المغرور.

**مخ:** ۷۱

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولولي او د هغې په معنا پوه شي.
- اِسم تفضیل وپیژني.
- فعل او فاعل وپیژني او هغه توضیح کړي.
- اِسم نکره زده کړي.

**د ښوونکي لپاره اِضافي معلومات:**

په عربي ژبه کې یو تعداد اسمونه دي چې د اِسم تفضیل په نامه سره یادیږي او په فارسي ژبه کې ورته صفت وایي، د دغه اسم مفهوم بهتري او یا د یو شي زیادت او زیاتوالی په یو صفت سره ښکاره کوي لکه فیل وایي (أنا اقوي منک) او دلته دا قوي کلمه صفت تفضیلي دی، یعنې تر ټولو قوي په دې معنا چې فیل دعوا کوي: د هغه قوت د اوښ له قوت څخه ډیر دی. معمولاً صفت تفضیلي په عربي ژبه کې د (أفعل) په وزن راځي لکه: أقوی – تر ټولو قوي – أکبر –تر ټولو لوی.أصغر: تر ټولو کوچنی، أشرف: تر ټولو شریف.

کیف: د استفهام د اداتو څخه دی او د هغه په واسطه د یو شي د حالت او څرنګوالي پوښتنه کیږي.

متی: د اِستفهام د اداتو څخه دی او د وخت پوښتنې ورڅخه کیږي.

**د کلماتو معنا:** أقوی: تر ټولو قوي.أطول: تر ټولو اوږد.طویل: اوږد: یحکی: ویل کیږي.ضاحکاً: د خندا په حالت کې.نتسابق: سیالی کوو. غدا: سبا.الموعد: د وعدې مکان یا زمان.

**د لوست میتودونه:** نمونه یي قرائت – سوال او ځواب – تکرار او مناقشه.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب تخته، تباشیر، تایپ، اوکاست.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د دغو حیواناتو نومونه په عربي ژبه ویلای شي؟ (ګیدړ، ایږه، پړانګ).<br>– د انګیزې پارول د نوي لوست د عنوان د پیدا کولو لپاره.<br>– څوک د دغه تورو څخه کلمه جوړولی شي؟<br>(ف، ي، ل) (ال، م، غ، ر، و، ر) | |
| ۳۰ دقیقې | – محترم ښوونکی د سم ځواب له موند لو څخه وروسته د نوي لوست عنوان چې (الفیل المغرور) دی په تخته لیکي او نوی لوست | |

| | | |
|---|---|---|
| | د الله جل جلاله په نوم سره پیل کوي. زده کوونکي کتابونو ته متوجه کوي او نوی لوست په لوړ آواز لولي. زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې ورپسې يې تکرار کړي، او ښوونکی يې اشتباهات اصلاح کوي.<br>– محترم ښوونکی د دريم ځل لپاره جملات لولي او معنا کوي يې. له زده کوونکو څخه غواړي چې مشکل کلمات له ځان سره ياد داشت کړي او ياد داشت شوي کلمات په تخته وليکي همدارنګه د هغو مترادف په عربي ژبه او ترجمه يې په پښتو ژبه وليکي. بيا له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست تکرار کړي او دی په خپله د هغوی اشتباهات اصلاح کوي تر څو د هغوی له پو هې څخه مطمئن شي او بيا له زده کوونکو سره مناقشه کوي.<br>– محترم ښوونکی لومړی تمرين په زده کوونکو د سوال او ځواب په ډول کار کوي او له هغوی څخه سوالونه کوي او ورڅخه غواړي چې د کتاب له مخې يې ځواب ووايي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک ويلای شي چې زموږ د نني لوست عنوان څه ؤ؟<br>– څوک لوست په سمه توګه لوستلای شي؟<br>– څوک ويلای شي چې د (قال الجمل) په جمله کې فعل او فاعل کوم دی؟<br><br>**د لوست پيغام:**<br>محترم ښوونکی بايد زده کوونکو ته د بې ځايه غرور اضرار ووايي او د اوښ او خپله قصه دوی ته د شاهد په ډول بيان کړي او دوی پوه کړي چې د انسان قوت د هغې په بدن کې نه دی غير له غځوالي څخه نور صفات هم شته دي چې انسان په هغه قوي دی لکه: علم قوت دی – ذکاوت قوت دی صبر او تحمل په خپله قوت شميرل کيږي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی دويم تمرين زده کوونکو ته دکورنۍ دندې په توګه ورکوي چې د قوسينو له منځ څخه کلمې واخلي او نا مکملې جملې مکملې کړي او خپله دوه مثالونه حلوي.<br>لکه: هذه سيارة جميلة – هذا كتاب جميل. | ۱۰ دقيقې |

**لوست: اتلسم (دویمه برخه)**

**سرلیک:** الفیل المغرور

**مخ:** ۷۲ – ۷۴

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- اسم تفضیل په جمله کې استعمال کړي.
- (ال) شمسي او قمري تمرین کړي.
- صفت او موصوف وپیژني.
- د کلماتو اضداد وپیژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**۱ –** الفباء د عربي په ژبه کې په دوه برخو ویشل کیږي چې یو ته یې قمري او بل ته یې شمسي وایي:
قمري څوارلس حرفونه دي چې د (اِبغ حجک و خف عقیمه) په مجموعه کې ذکر شویدي او عبارت دي له (أ، ب، غ، ح، ج، ک، و، خ، ف، ع، ق، ي، م، ه).
که چېرې د تعریف ال په قمري حروفو کې داخل شي د لام حرف تلفظ کیږي او د قمري (ال) په نوم سره یادیږي.

**۲ –** شمسي حروف هم څوارلس دي چې په لاندې ډول ذکر شویدي (ط، ث، ص، ر، ت، ض، ذ، ن، د، س، ظ، ز، ش، ل) که چېرې د ال تعریف د یو اسم په سر کې داخل شي.د هغه لام تلفظ نه کیږي یعنې د لام تلفظ حذفیږي او هغه حرف چې د لام تعریف څخه وروسته راځي مشدد کیږي او د شمسي ال په نامه یادیږي د غه مطلب په نورو درسونو کې بیان شویدی.

**د کلماتو معنا:** أبرد: تر ټولو ډیر سوړ.ارخص: تر ټولو ارزان.البغل.کچر.صعب: ستونزمن.یفترسُ: داړي (داړل) یصیح: چیغې وهي.

**د لوست میتودونه:** مناقشه یي – سوال او ځواب – ډله ییز.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک دغه جمله په تخته لیکلی او معنا کولی شي؟:(قال الفیل ضاحکاً). | |
| ۳۰ دقیقې | – محترم ښوونکی لومړی د اسم تفضیل په باره کې لنډ معلومات ورکوي او بیا د دریم تمرین په حل شروع کوي. یو مثال یې د نمونې په توګه حل کوي او یو د اسم تفضیل صیغه د قوسو له منځ | |

| | | |
|---|---|---|
| | څخه انتخاب او د جملاتو مخې ته يې ليکي.<br>– لکه: هذا الماء أبرد – او نور مثالونه په زده کوونکو حلوي.<br>– لومړی ښوونکی د (ال) شمسي او قمري په باره کې لنډ معلومــات ورکوي او بيا د څلورم تمرين کلمات د تلفظ له مخې زده کوونکو ته په سمه توګه په لوړ آواز لولي. بيا يو زده کوونکي ته لارښوونه کوي چې کلمات ولولي. او نور يې ورپسې تکرار کړي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکي په دوو ګروپونو ويشي او يو يو کس يې د نماينده په توګه د تختې مخې ته راغواړي يو يې سوال او بـــل يې ځواب وايي.<br>– محترم ښوونکی شپږم تمرين زده کوونکو ته د اِملاء په ډول وايـــي او زده کوونکي يې په خپلو کتابچو کې ليکي. بيا ښـــوونکی د زده کوونکو په سر ګرځي او د دوی اشتباهات اصلاح کوي.<br>– محترم ښوونکی اووم تمرين په تخته ليکي او معنا کـــوي يـــې او د هرې کلمې ضد د هغې کلمې مخې ته ليکي.<br>**لکه:** قصير، طويل، صعب، سهل، ناقص، کامل.<br>– محترم ښوونکی اتم تمرين له زده کوونکو سره مناقشه کوي او بيا يې حلوي. د لومړي  لست کلمې د دويم لست د مناسبو کلمو سره يو ځای کوي او بيا يې په زده کوونکو تکراروي لکه:<br>– للفيل خرطوم طويل.<br>– للطير جناحان کبيران.<br>– الجمل يأکلُ الورقَ.<br>– الذئبُ يفترسُ ا لحيوان.<br>– الديک يصيح في الصباح.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته الواجب المنزلي کورنۍ دنده ورکوي او د هغې د حلولو په اړه زده کوونکو ته توضيح ورکوي. | ۵<br>دقيقي |

**لوست:** نولسم (**لومړۍ برخه**).

**سرلیک:** الفیل المغرور.

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت )

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د ماضي او مضارع فعلونو صحیح او سم استعمال په جملو کې وپېژني.
- د (ظ) او (ز) صحیح مخارج وپېژني او د دوی په منځ کې توپیر وکړای شي.
- ماضي فعلونه په مضارع تبدیل کړای شي.

د ښوونکي لپاره اِضافي معلومات:

**فعلیه جمله:**

له هغې جملې څخه عبارت ده چې په فعل سره شروع شوې وي.

**اِسمیه جمله:** له هغې جملې څخه عبارت ده چې په اسم سره شروع شوې وي.

**ماضي فعل:** هغه فعل ته وایي چې د تیرې شوې زمانې په کار او عمل کولو دلالت کوي.

**مضارع فعل:** هغې فعل ته وایي چې د حال او راتلونکي زمانې په کار او عمل کولو دلالت کوي.

د (ظ) حرف مخرج د ژبې سر او د ثنایا علیا غاښونو پاسنۍ برخه ده.

**د کلماتو معنا:** آسف: افسوس صاح: آواز ویستل.عطشان: تږی.استعد: آماده،تیار: العشبُ: واښه.السباق: مسابقه (**سیالي**)

**الجوع:** لوږه. العطشُ: تنده.

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب نمونه یي لوستل – یو کسیز – ډله ییز.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br><br><br>۳۰ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک کولای شي ووایي کومه یوه ددې دوه جملو څخه صحیح ده؟<br>– للفیل جناحان کبیران.<br>– للفیل خرطوم طویل.<br>– هڅوونکې پوښتنې د نوي لوست د سرلیک د پیدا کولو لپاره:<br>– څوک ویلای شي کوم حیوان خرطوم لري؟<br>– ښوونکی وروسته له ځواب موندلو څخه دنوي لوست سرلیک چې (الفیل المغرور) دی په غټ خط سره په تخته لیکي.<br>– ښوونکی زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او د لوست متن | |

| وخت | د ښوونکي او زده کوونکو فعالیتونه | د ارزونې ټکي |
| --- | --- | --- |
|  | په مناسب آواز سره لولي او زده کوونکي د ده لوستلو ته غوږ نیسي.<br>د دویم ځل لپاره ښوونکی لوست جمله په جمله لولي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي. له دې څخه وروسته ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په چوپتیا سره ولولي او مشکلي کلمې یاد داشت کړي.وروسته له دې ښوونکی مشکلې کلمې معنا کوي او د لوست مفهوم په عمومي توګه له زده کوونکو سره شیړي.<br>- ښوونکی درې تنه زده کوونکي په نوبت سره د ټولګي مخې ته راغواړي او په هر یوه د لوست د متن درې کرښې په دقیقه توګه لولي او د لوست مفهوم شیړي او مناقشه پرې کوي.<br>- ښوونکی د لوست اول تمرین زده کوونکو ته په لاندې ډول په تخته حل کوي او له زده کوونکو څخه غواړي چې هغه ولولي.<br>- حملَ الفيل معه الماء و العشبَ – لا، ما حمل الجملُ شيئاً – كان الجوُ حارّاً.<br>- شعر الفيل بالجوع و العطش.<br>- ښوونکی څو تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي او د دویم تمرین حل ورباندې عملي اِجراء کوي، پداسې ډول چې په یوه لست کې د اهلي حیواناتو نومونه او په دویم لست کې د وحشي حیواناتو نومونه لیکي. | زده کوونکي کلمې تکراروي. |
| ۱۰ دقیقي | **ارزونه:**<br>- څو کولای شي د «شعر الفیل بالجوع والعطش» جمله معنا کړي؟<br>- څوک کولای شي د آسف: صاح، عطشان، کلمې په تخته ولیکي؟<br>- څوک کولای شي د اِسمیه او فعلیه جملو په هکله خبرې وکړي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>- ښوونکی د لوست دویم تمرین زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په توګه ورکوي. |  |

**لوست**: **نولسم (دويمه برخه)**

**سرليک:** الفيل المغرور.

**مخ:** ۷۷ – ۷۸

**وخت:** ۴۵ **دقيقې** (يو درسي ساعت)

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- د (ظ – ز) په صحيح تلفظ پوه شي.
- د عربي الفاظ سم وليکلی شي.
- د ماضي فعلونو بدلول په مضارع سره زده کړي.
- د کلماتو معنا: نسيتُ: هير مې کړ، رجعنا، راوګرځيدو.الغداء: د غرمې ډوډۍ.البردُ: يخني.

کوبة: کوزه.الاِصبعُ: ګوته.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب – تکرار – يو کسيز – مناقشه يي.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظيم او کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي.<br>– څوک کولای شي د ماضي او مضارع فعلونه بيان کړي؟<br>– څوک کولای شي (قال) په مضارع تبديل کړي؟ | |
| ۳۰ دقيقې | – ښوونکی د دريم تمرين کلمې چې د (ظ او ز) د تلفظ په هکله دي د نمونې په ډول زده کوونکو ته لولي او ورڅخه غواړي چې کلمې دې ورپسې تکرار کړي. ښوونکی د دوی لوستل او تلفظ کول اصلاح کوي.<br>– ښوونکی څلورم تمرين زده کوونکو ته داِملاء په توګه وايي او وروسته ورڅخه غواړي چې همدغه جملې خپلو کتابچو کې دربې ځلې وليکي.<br>– ښوونکی پنځم تمرين زده کوونکو ته معنا کوي او وروسته دوه تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي او ذکر شوی تمرين د محاورې په ډول ورباندې اجراء کوي. دغه عمل دوه ځلې اِجراء کوي.<br>– ښوونکی شپږم تمرين په زده کوونکو د تختې په مخ حل کوي په داسې ډول سره چې د ماضي فعل جملې په مضارع فعل سره تبديل کړي.<br>– ښوونکی د اووم تمرين يومثال زده کوونکو ته د نمونې په شکل په لاندې ډول حل کوي. | |

| | | |
|---|---|---|
| | – هات الماء أنا أشعرُ بِالعطش.<br>د تمرين نور مثالونه په دوو تنو زده کوونکو حل کوي او د دوی غلطۍ اصلاح کوي.<br>– ښوونکی لومړی د مفرد او جمع تکسير په هکله روښنايي اچوي او وروسته اتم تمرين په زده کوونکو لولي، هدايت ورته کوي چې په خپلو کتابچو کې يې وليکي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– ښوونکی د الواجب المنزلي تمرين زده کوونکو ته دکورنۍ دندې په توګه ورکوي. | ۵<br>دقيقي |

**لوست: شلم (لومړۍ برخه)**

**سرلیک:** العام الدراسي الجديد.

**مخ:** ۷۹

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د لوست متن سم ولوستلی شي.
- د نسبت اُسلوب ياد کړي.
- شد (ّ) او د اِستعمال ځايونه يې وپيژني.
- د نوو کلمو جمع وپيژني.

**د ښوونکي لپاره اِضافي معلومات:**

**نسبت او د هغې د جوړولو طريقه:** نسبت عبارت دی له پيوست کولو د يا مشددې څخه په آخر دهغه اسم کې چې نسبت يې يو شي ته کوو لکه: اسلام : اسلامي.قرآن: قرآني.جمع هغه ده چې زيات په دوو دلالت کوي.

**د کلماتو معنا:** مبکراً: وختي.زملاءُ: د هغه ملګري.يهنئُ: مبارکي وايي.يتبادلون: يو له بل سره يې بدلوي.

**د لوست ميتودونه:** نمونه يي لوستل – سوال او ځواب – يو کسيز.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب – تخته – تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی وروسته له سلام، احوال پوښتنې د ټولګي ترتيبول او کورنۍ دندې له کتنې څخه د تير لوست ارزونه کوي.<br>– څوک ويلای شي چې(كان الجو حارّاً) څه معنا لري؟<br>– څوک ويلای شي چې د (أنا عطشان) معنا څه ده؟<br>– هڅوونکې پوښتنې:<br>– څوک کولای شي ووايي چې نوي تعليمي کال ته په عربي ژبه کــې څه وايي؟ | |
| ۳۰ دقيقې | – محترم ښوونکی د سم ځواب له موندلو څخه وروسته د نوي لوست سرليک چې (العامُ الدراسي الجديد) دی په غټ خط سره په تختـــه ليکي.<br>– ښوونکی نوی لوست په مناسب آواز زده کوونکو ته لولي او له زده کوونکو څخه غواړي چې د لوستلو په وخت کې غوږ ونيسي.<br>همدارنګه د دويم ځل لپاره لوست لولي او زده کوونکي يې ورسره تکراروي، وروسته له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په چوپتيا سره ولــولي او د | |

| | | |
|---|---|---|
| | مشکلو کلمو لاندې خط راکاږي.<br>- ښوونکی د لوست متن له زده کوونکو سره مناقشه او څېړي او د معنا او مفهوم په هکله یې بحث کوي. کوښښ کوي چې زده کوونکي د لوست د متن د معنا او مفهوم دځرګندلو په وخت کې له ده سره شریک شـــي چې دوی هم خپله پوهه او اِستعداد په کار واچوي.<br>- وروسته له دې نه ځینو زده کوونکو ته هدایت کوي چې د لوســـت متن ولولي او دی ورته غلطیانې سموي.<br>- ښوونکی د لوست لومړی تمرین د زده کوونکو په ګډون د مناقشې په شکل حل کوي. پداسې شکل چې سوال په عام ډول مطرح کوي او وروسته له زده کوونکو څخه غواړي چې د خپلو کتابونو په مـــتن کې یې ځواب په دقیق ډول پیدا کړي لکه په لاندې توګه:<br>- الیوم یبدأُ العام الدراسي الجدید.<br>- اِستیقظ حمزةُ مبکراً.<br>- قال حمزةُ أنا الیومَ مسرور جداً.<br>- نعم اِستعد حمزةُ و أخوه للمدرسةِ.<br><br>**ارزونه:**<br>- څوک کولای شي ووایي؟: نوي تعلیمي کال ته په عربي کـــې څـــه وایي؟<br>- څوک کولای شي – اِستیقظَ – مبکراً – معنا کړي؟<br>- څوک د (زملاء) دکلمې مفرد ویلای شي؟<br><br>**کورنی دنده:**<br>- ښوونکی دویم تمرین زده کوونکو ته د کورنۍ دنـــدې پـــه توګـــه ورکوي. | ۱۰ دقیقې |

**لوست**: **شلم** (**دویمه برخه**)

**سرلیک:** العام الدراسي الجدید.

**مخ:** ۸۰

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت)

**موخې:**

په تیر لوست کې ذکر شویدي.

**د کلماتو معنا:** ماشیاً: پیاده.عَلَقَ: ځوړند یې کړ.قدّر: اندازه یې کړ.

**د لوست میتودونه:** مناقشه یي – سوال او ځواب – تکرار.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د تیر لوست ارزونه کولی شي؟<br>– څوک کولای شي د مبکراً، استعد، استیقظ.کلمې په جملـــو کـــې استعمال کړي؟<br>– څوک د (أذهبُ) او (تذهبُ) تر منځه توپیر کولی شي؟ | |
| ۳۰ دقیقې | – ښوونکی زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او نوی لوست د الله جل جلاله په نوم سره پیل کوي او دریم تمرین په زده کوونکو د محاورې او سوال او ځواب په ډول عملي اِجراء کوي.<br>– ښوونکی د څلورم تمرین کلمې زده کوونکو ته لـــولي او د تلفـــظ کولو طریقه ورته ښیي وروسته یې په زده کوونکو تکراروي.<br>– ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د خپلو ځـــانونو څخـــه جملې جوړې کړي او په خپلو کتابچو کې یې ولیکي لکه څرنګه چې مثال ورکړل شوی دی.<br>– ښوونکی د شپږم تمرین مفرد او جمع کلمې په جلا ډول سره په دوو قایمو کې د تختې په مخ لیکي او زده کوونکو ته یې په مناسب آواز سره لولي. له هغوی څخه غواړي چې په ده پسې یې تکرارکړي. له دی نه پس څو تنه زده کوونکي په نوبت سره د ټولګي مخـــې تـــه راغواړي او لارښوونه ورته کوي چې کلمې د تختې له مخې په لوړ آواز سره ولولي. | |

| | | |
|---|---|---|
| | - ښوونکی آیت شریف چې په اووم تمرین کې ذکر شــوی دی. زده کوونکو ته د املا په ډول وایي او لارښوونه ورته کوي چې آیــت شریف په خپلو کتابچو کې درې ځلې ولیکي.<br>- ښوونکی د اتم تمرین جملې د تختې په مخ لیکي او له ټو تنــو زده کوونکو څخه غواړي چې د صحیح ځوابونو مخې ته د (صـــحیحه) علامه کیږدي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>- ښوونکی د (الواجب المنزلي) تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنـــده ورکوي او ورته وایي چې د تمرین د کلمو ضد د لوست لـــه مـــتن څخه پیدا کړي او د تمرین د کلمو په مقابل کې یې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ۵ دقیقې |

**لوست: یو ویشتم (لومړۍ برخه)**

**سرلیک:** شهور السنة الهجرية.

**مخ: ۸۳**

**وخت: ۴۵ دقیقې** (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د حروف جر (مِن) او (اِلی) سم استعمال په جملو کې وپیژني.
- د (أ) او (ع) تورو سم تلفظ وکړای شي.
- د لوست جمع تکسیر او مفردې کلمې وپیژني.
- د مضارع فعل د جمع متکلم صیغه په جملو کې اِستعمال کړای شي.

**ښوونکي ته اِضافي معلومات:**

۱ – مِن د جر توری دی او د اِبتداء لپاره اِستعمالیږي.

۲ – اِلی د جر توری دی او د اِنتها او غایې لپاره اِستعمالیږي.

۳ – د جمع متکلم جوړول: د ماضی فعل په سر کې نون راوړل او د ف کلمې ساکنول او په آخر کې ضمه ورکول لکه: نکتبُ، نقرأُ.

**د کلماتو معنا:** بدایة: شروع.شهور: میاشتې.

**د لوست میتودونه:** نمونه یي لوستل – سوال او ځواب – تکرار.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب – تخته – تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکی فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک کولای شي د (متی تستیقظ من النوم) جملې ځواب په عربي ووایي؟<br>– څوک کولای شي ووایي: آیا غیر د شمسي کال څخه بل کال هم وجود لري که وي نو کوم دی؟ | |
| ۳۰ دقیقې | – ښوونکی د ځواب له موندلو څخه وروسته د نوي لوست سرلیک چې (شهور السنة الهجرية) دی د تختې په مخ لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي.د لوست متن په لوړ آواز سره زده کوونکو ته لولي او په دویم ځل لوستلو کې زده کوونکي په ده پسې لوست تکراروي. | |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | – ښوونکی د لوست متن په زده کوونکو تکراروي چې د دوی له سم لوستلو څخه ډاډه شي. د لوست د مفهوم او معنا په هکله لـــه دوی سره مناقشه کوي او کوښښ کوي چې په دې ډول پخپلـــه دوی د لوست معنا او مفهوم ومومي.<br>– ښوونکی څلور تنه زده کوونکي په نوبت سره د ټولګي مخـــې تـــه راغواړي او د لوست متن په دوی تکراروي او هم مرسته ورســـره کوي او تشویقوي يې.<br>– ښوونکی د لوست لومړی تمرین زده کوونکو ته لولي او معنا کوي يې او په زده کوونکو يې تکراوي. وروسته له دوی سره دجملو پـــه سموالي او ناسموالي کې مناقشه او څیړنه کوي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک کولای شي د قمري کال د میاشتو نومونه واخلئ؟<br>– څوک ویلای شي چې (مِن) او (اِلی) د کومو تورو له جملې څخـــه دي؟.<br>– څوک کولای شي د لوست د لومړي تمرین جملې سمې ولـــولي او معنا يې کړي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– ښوونکی د لوست دویم تمرین زده کوونکو ته د کورنۍ دندې پـــه توګه ورکوي.<br><br>**د لوست پیغام:**<br>– ښوونکی د تاریخ د شروع او اهمیت په هکله د انسانانو په ژوند کې معلومات ورکوي او روښـــنايي اچـــوي پـــه څـــانګړې توګـــه د مسلمانانولپاره د هجري کال رول او نقـــش پـــه اړه معلومـــات او وضاحت وړاندې کوي.<br>هجري تاریخ د مسلمانانو مستقل شخصیت په ډاګه کوي لکه څرنګه چې د اسلام ستر پیغمبر صلی الله علیه وسلم د دې امر په هکله تاکید کـــاوه چې مسلمانان د یوه مستقل شخصیت خاوندان دي او د غیر مســـلمانانو څخه باید تقلید ونکړي.د هجري تاریخ انتخاب په اصل کې د مسلمانانو آزادي او اِستقلال دی. | |

**لوست: يو ويشتم (دويمه برخه)**

**سرليک:** شهور السنة الهجرية.

**مخ:** ۴۸ – ۸٦ پورې.

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت)

**موخې:**

په تير لوست کې ذکر شويدي.

**د کلماتو معنا:** يصومُ: روژه نيسي.غرار: شکل، مثال.

**د لوست ميتودونه:** مناقشه يي.يو کسيز.تکرار.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی وروسته له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظيم او د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي.<br>– څوک ويلای شي د قمري کال د مياشتو نومونه ووايي؟ | |
| ۳۰ دقيقې | – لوست د لوی الله جل جلاله په نوم شروع کيږي. ښوونکي د دريم تمرين يو مثال زده کوونکو ته په تخته حل کوي لکه: ذهبتُ. (من) او (اِلی) کلمې د جملو په مناسبو ځايونو کې ليکي.<br>– ښوونکی څلورم تمرين زده کوونکو ته لولي او معنا کوي يې او وروسته يې په دوی د سوال او ځواب په ډول سره اجراء کوي.<br>– ښوونکی د پنځم تمرين دکلمو (أ، ع) سم تلفظ زده کوونکو ته لولي او له دوی څخه غواړي چې په ده پسې يې تکرار کړي بيا په يو کسيز ډول سره دغه کلمې په زده کوونکو تکراروي چې دوی د ذکر شوو تورو سم تلفظ وکړای شي او په توپير يې پوه شي.<br>– ښوونکی د شپږم تمرين يو مثال زده کوونکو ته حل کوي **لکه:** السنةُ الهجرية اِثنا عشر شهراً.او زده کوونکو ته هدايت ورکوي چې د (ا) قايمې د (ب) په قايمه کې له جملو سره وصل کړي، پدې هکله ښوونکی ورسره مرسته کوي او هڅوي يې. | زده کوونکي کورنۍ دنده په لاندې ډول سره حل کوي.<br>– نحنُ نقرأُ القرآن كلّ يوم<br>– نحن نذهبُ اِلی المدرسةِ كل يوم.<br>– نحنُ ننظفُ البيت كل يوم.<br>– نحن نكتبُ ا لواجب كلّ يوم. |
| ۵ دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>– ښوونکی د(الواجب المنزلي) تمرين زده کوونکو ته دکورنۍ دندې په توګه ورکوي. | |

**لوست**: **دوه ویشتم**.

**سرلیک:** مطار کابل.

**مخ:** ۷۸

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د لوست متن سم ولوستلی شي.
- جمع مؤنث سالم و پیژني.
- د ماضي فعل صیغې وپیژني.
- د مضارع فعل ، متکلم او مخاطب څخه په استفادې سره محاوره وکړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

جمع مؤنث سالم: هغې ته وایي چې له دوو څخه په زیاتو شیانو او یا کسانو دلالت کوي.

د جمع مؤنث سالم کلمې جوړول داسې کیږي چې مفرد یې نه تغییر کیږي بلکه په آخر د مفرد کې الف او تا اضافه کیږي.

**د کلماتو معنا:** مطار: هوایي ډګر.دولي.نړیوال.طائرات: طیارې.العودةُ: راګرځیدل.بلدنا: زموږ هیواد.

**د لوست میتود:** نمونه یي لوستل، محاوره، په چوپتیا سره مطالعه، یو کسیز، مناقشه.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی وروسته له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي د نظم او د کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د (أ، ع) حروف د علی – ألا – ضیاع په کلمو کې سم او دقیق تلفظ کولی شي؟<br>– د نوي لوست د سرلیک د پیدا کولو لپاره هڅوونکې پوښتنې:<br>– څوک ویلای شي هوایي ډګر ته په عربي ژبه کې څه وایي؟ | |
| ۳۰ دقیقې | – ښوونکی وروسته دځواب موندلو څخه د نوي لوست سرلیک چې (مطار کابل) دی په غټ خط د تختې پر مخ لیکي او نوی لوست د الله جل جلاله په نوم سره پیلوي.<br>– ښوونکی لوست په لوړ آواز زده کوونکو ته لولي او ورڅخه غواړي چې لوست ته غوږ ونیسي په دویم ځل لوستلو کې ورڅخه غواړي چې په ده پسې یې تکرار کړي. وروسته د دویم ځل لوستلو څخه ښوونکی د لوست متن له زده کوونکو سره مناقشه کوي او مشکل کلمات د | |

| وخت | فعالیتونه | |
|---|---|---|
| | تختې په مخ لیکي او معنا کوي یې. وروسته له لوست څخه د متن د معنا، مناقشې او څېړنې څخه ښوونکی څو تنه زده کوونکي انتخابوي او په نوبت سره دوه کسه د ټولګي مخې ته راغواړي چې د لوست متن په لوړ آواز سره د محاورې په ډول ولولي. ښوونکی پدې وخت کې د دوی کار ترکتنې لاندې نیسي، مرسته ورسره کوي او تشویقوي یې.<br>– ښوونکی د لوست لومړی تمرین له زده کوونکو سره د مناقشې په ډول حل کوي او سربیره پردې کوښښ کوي چې د هغو کلماتو سمه معنا چې ښوونکی ورته اشاره کوي د جملې له سیاق څخه پیدا کړي او مرادف یې په عربي کې ووایي.<br>– ښوونکی د لوست دویم تمرین په دوه زده کوونکو د تختې په مخ حل کوي او نورو زده کوونکو ته هدایت ورکوي چې د تمرین په حل کې د لوست له متن څخه استفاده وکړي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست د دریم تمرین د مفرد او جمع مؤنث کلمې ولولي او غلطیانې یې اصلاح کوي.<br>– ښوونکی د لوست څلورم تمرین له زده کوونکو سره د مناقشې په ډول اجراء کوي او دی د خپل کار د آسانۍ لپاره یو مثال جوړوي او پاتې نور زده کوونکي یې لیکي او دی ورسره مرسته کوي. وروسته ورڅخه غواړي چې دغه جملې په خپلوکتابچو کې ولیکي.<br>– ښوونکی پنځم تمرین د جدول په شکل د تختې په مخ جوړوي او وروسته له زده کوونکو څخه غواړي چې دوی هم په دغه شکل جدول په خپلو کتابچو کې جوړ کړي او وروسته خالي ځایونه ډک کړي چې بیا ښوونکی د دوی کتابچې ملاحظه کوي.<br>– ښوونکی د شپږم تمرین جملې په تخته لیکي او وروسته له زده کوونکو څخه غواړي چې دغو جملو ته حرکت ورکړي.<br>– ښوونکی د اووم تمرین کلمې په تخته لیکي او زده کوونکو ته یې معنا کوي او وروسته له زده کوونکو څخه غواړي چې دغه کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>– څوک کولای شي دې سوال ته ځواب ووایي؟ (أین ذهب عثمان؟)<br>– څوک کولای شي د (مطار) او (دولي) کلمې معنا کړي؟ | |

| | | |
|---|---|---|
| | – ځوک کولای شي دغه جمله (زه د هوايي ډګر ليدلو ته لاړم) په عربي تبديل کړي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی د لوست دريم تمرين زده کوونکو ته دکورنۍ دندې پــه توګــه ورکوي.<br><br>**د لوست پيغام:**<br>محترم ښوونکی د کابل د هوايي ډګر او همدارنګه د نــورو هيوادونـــو د هوايي ډګرونو په هکله خبرې کوي.د هوايي ډګرونو اهميت دهيواد پــه ترقي او پرمختګ کې ارزښت لري. له نورو ملکونو سره اړيکي د هوا له لارې د طيارو په واسطه تر سره کيږي، بايد چې په هېــواد کـــې هـــوايي ډګرونه زيات او په پرمختللي ډول جوړ اوسنبال شي چې د لويو او پر مخ تللو هېوادونو سره سيالي وکولای شي. | |

**لوست**: **درویشتم (لومړۍ برخه)**

**سرلیک:** القریةُ.

**مخ: ۹۱**

**وخت: ۴۵ دقیقې** (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د لوست متن سم ولوستلای شي.
- اسمیه جمله وپیژني او جوړه یې کړي.
- مبتدا او خبر و پیژني.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

اسمیه جمله په معموله توګه د مبتدا او خبر څخه جوړیږي، خبر یا مفرد وي یا جمله او یا شبه جمله.

خبر یا اسمیه جمله وي لکه: محمد ابوه قائم.او یا فعلیه وي لکه: یذهب محمد الی المدرسةِ.

خبر شبه جمله یا جار او مجرور وي لکه: محمد في البیت.او یا ظرف وي لکه: محمد جنبَ أخیه.

خبر چې کله جمله فعلیه وي رابط یې د عدد، تذکیر او تانیث باید مطابق د مبتدأ وي.

**د کلماتو معنا:** مکَثَ: ځنډ یې وکړ.مناظر: منظرې.المیاه: او به.تمتع: خوند یې واخیسته.خضراء: شین.مرتفعة: اوچت او لوړ.

**د لوست میتودونه:** نمونه یي لوستل – مناقشه – سوال او ځواب – یو کسیز – تکرار.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب – تخته – تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښوونکي وروسته له سلام، احوال پوښتنې، د کورنۍ دندې له کتلو او د ټولګي له تنظیم څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک کولای شي د (سیارات) او (مسافرات) کلمـــو مفـــرد ووایي؟ | |
| ۳۰ دقیقې | **هڅوونکې پوښتنې:**<br>– څوک کولای شي ووایي د اُوسیدو هغه منطقې چې له ښـــار څخه لرې وي په څه نوم یادیږي؟<br>– ښوونکی وروسته له ځواب موندلو څخه د نوي لوست سرلیک چې (القریةُ) دی په غټ خط سره پـــه تختـــه لیکـــي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او نوی لوست د لـــوی الله جل جلاله په نوم سره پیل کوي.<br>– ښوونکی لوست په لوړ آواز سره لولي او له زده کوونکو څخه | |

| | | |
|---|---|---|
| | غواړي چې د ده لوستلو ته غوږ ونيسي.<br>– ښوونکی متن دويم ځل لپاره لولي او له زده کوونکـــو څخـــه غواړي چې لوست ورپسې تکرار کړي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن يو ځل په چوپتيا سره ولولي او مشکل کلمات يې يـــاد داشـــت کړي.<br>– ښوونکی د لوست متن په څو تنو زده کوونکو تکـــراروي او ورسره د مناقشې په شکل د لوست د متن مفهوم واضيح کوي او له زده کوونکو سره د متن د سم پوهاوي لپاره مرسته کوي او تشويقوي يې.<br>– ښوونکي د (مکث) المياه – خضراء – تمتع – کلمې په تخته ليکي او له دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې ذکر شـــوو کلمو ته حرکات ورکړي او له نورو دوو تنـــو زده کوونکـــو څخه غواړي چې دغه کلمې په جملو کې استعمال کړي.<br>– ښوونکی د لوست د لومړي تمرين يو مثال د بيلگې پـــه ډول زده کوونکو ته حل کوي لکه: ذهب عارف او أخـــوه اِلـــی القريةِ.او وروسته دوه تنه نور زده کوونکي د ټولگي مخې تـــه راغواړي چې د تمرين پاتې سوالونه حل کړي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک کولای شي د لوست متن ولولي او معنا يې کړي؟<br>– څوک د (ثم رجعنا اِلی المدينة سعيدين) معنا کولی شي؟<br>– څوک د (مکثَ – المياه – خضراء – کلمې معنا کولی شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی د لوست څلورم تمرين زده کوونکو ته کـــورنۍ دنـــده ورکوي. | |

**لوست:** **درویشتم (دویمه برخه)**

**سرلیک:** القريةُ

**مخ:** ۹۲ – ۹۴

**وخت ۴۵** دقيقې (يو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- د ماضي فعل د غائب مذکر او تثنيه صيغې وپيژني.
- د حرف عطف (و) سم استعمال په جملو کې وپيژني.
- د همزه قطع سم ليکل د مضارع فعل د متکلم په صيغو کې زده کړي.

**ښوونکي ته اِضافي معلومات:**

۱ – د ماضي فعل د تثنيه طريقه: دفعل په اخر کې د الف له اضافه کولو څخه عبارت دی لکه: هو ذهب – هما ذهبا.هي ذهبت.هما ذهبتا.

۲ – واو: د عطف توری دی او د معطوف او معطوف عليه د مفهوم اشتراک په فعل کې تر سره کوي لکه: قرأ محمد و أحمد الدرسَ.

۳ – همزه قطع: عبارت له هغې همزې څخه ده چې د کلمې په ابتداء او وسط کې ليکل شوې وي او تلفظ کيږي البته د الف له پاسه يا لاندې ليکل کيږي.

**د کلماتو معنا:** القمحُ: غنم.الأرز: وريجې – الخضروات: ترکاري.الفواکه: ميوې.

**د لوست ميتودونه:** مناقشه – تکرار – ډله ييز – يو کسيز.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی وروسته له سلام، احوال پوښتنې، د کورنۍ دندې له کتلو او د ټولګي له تنظيم کولو څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي.<br>– څوک کولای شي د تير لوست دوه کرښې ولولي او معنا يې کړي؟<br>– ښوونکی د لوست دويم تمرين زده کوونکو ته لولي او معنا کوي يې او وروسته د محاورې په ډول يې په زده کوونکو اجراء کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکي د مسابقې لپاره په ډلو ويشي او ورڅخه غواړي چې د لوست دريم تمرين د اِملاء په شکل خپلو کتابچو کې وليکي. وروسته د هرې ډلې استازی د ټولګي مخې ته راځي او خپل ليکل شوي متن لولي. ښوونکی د دوی غلطي اصلاح کوي او د کاميابې ډلې نتيجه عادلانه اعلانوي. | |

| | | |
|---|---|---|
| | - ښوونکی د لوست پنځم تمرين زه کوونکو سره د مناقشې په ډول حل کوي .<br>- قام حامد و كتب الدرس – دخل محمود الى الصف و جلس في مكانه.غسل نسيم يديه او أكل الطعام – سافر عثمان اِلى هرات و مكث فيها يومين.او نورې جملې په زده کوونکو تکراروي او ورڅخه غواړي چې جملې په کتابچو کې وليکي.<br>- ښوونکی شپږم تمرين د ورکړل شويو مثالونو مطابق په تخته رسم کوي او له زده کوونکو څخه غواړي چې خپلو کتابچو کې يې رسم کړي او وروسته د مناقشې په ډول هغه خالي ځايونه ډکوي.<br>- ښوونکی د اووم تمرين کلمات په تخته ليکي او معنا يې هم د هغه په مقابل کې ليکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې کلمې د معنا سره خپلو کتابچو کې وليکي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی د (الواجب المنزلي) تمرين زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | |

## لوست: څلور ویشتم (لومړۍ برخه)

**سرلیک:** سوق القريةِ.

**مخ:** ۹۵

**وخت:** ۴۵ دقیقې یو درسي ساعت.

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د لوست متن سم ولولي او معنا يې کړای شي.
- محاوره سمه وکړای شي.
- د ضمیرِ استعمال د اسم په ځای وپیژني.
- د مد حروف (و – ي) په کلمو کې سم تلفظ کړای شي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات**

که چیرته په مضارع فعل باندې (لم) جازمه داخل شي مضارع فعل مجزوم کوي او د مضارع فعل د جزم علامه دا ده که چیرته مضارع فعل صحیح الآخر وي نو علامه د جزم يې سکون وي او که چیرته مضارع فعل معتل الآخر وي نو بیا په حالت د جزم کې يې آخر حرف حذف کیږي او که چیرته مضارع فعل د خمسة أفعالو څخه وي د جزم په حالت کې د مضارع نون حذف کیږي چې د لوست دویم تمرین د دې حالت بیانوونکی دی.

د کلماتو معنا: التحق: شامل شو.غالیة: قیمته.التقیا: مخامخ شول.المدینةُ: ښار.الحاجات: ضروریات.رخیصة: ارزان: الأسعارُ: نرخونه.منخفضة: ښکته (ارزان).

**د لوست میتودونه:** نمونه يې لوستل – سوال او ځواب – تکرار – یو کسیز.

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته، کتاب، تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | - محترم ښوونکی وروسته د سلام، احوال پوښتنې، د کورنۍ دندې له کتلو او د ټولګي له تنظیم څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>- څوک کولای شي دغه جمله معنا کړي (أنا اُحب القريةَ لأنَّ جوّها جميل)<br>- هڅوونکي پوښتنې د نوي لوست د سرلیک پیدا کولو لپاره.<br>- بازار ته په عربي ژبه کې څه وايي ؟ | |
| ۳۰ دقیقې | - ښوونکی وروسته د ځواب موندلو څخه د نوي لوست سرلیک چې (سوق القرية) دی په تخته لیکي او وروسته د لوست متن په مناسب آواز سره زده کوونکو ته لولي او دوی ته لارښوونه کوي چې خپلو کتابونو ته په ځیر کتني سره د ښوونکي لوستلو ته په غور او دقت | |

| | | |
|---|---|---|
| | سره غوږ ونیسي.<br>– ښوونکی د دویم ځل لپاره لوست لولي او زده کوونکي يې تکراروي او د دريم ځل لپاره ښوونکی مشکل کلمات په تخته ليکي او زده کوونکو ته د مناقشې په ډول معنا کوي او وروسته د لوست متن د خبرو اترو په واسطه په دوه کسيز يا په دوه ډلو کي په زده کوونکو يې اجراء کوي په داسې ډول سره چې يو زده کوونکي د عارف او بل يې د حامد په رول کې د لوست متن ولولي او زده کوونکی به د کتاب له مخې د محاورې لوستلو په وخت کې د عارف او حامد د نوم يادولو څخه ډډه کوي اوښوونکی د دوی غلطي او اِشتباهات اِصلاح او تشويق کوي يې.<br>– ښوونکی د لوست دويم تمرين چې منظور يې د مد د دوو تورو (و – ي) سم تلفظ دی زده کوونکو ته په لوړ آواز لولي او همدارنګه يې په دوی تکراروي تر څو دوی د ذکر شوو تورو سم تلفظ وپيژني.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک ويلای شي چې (ښار او کلمې ته په عربي ژبه کې څه وايي؟<br>– څوک د (مِن أين تشتري الحاجات اليوميةُ) جمله معنا کولی شي؟<br>– څوک کولای شي د (الطينُ، غالية، شعبي) کلمو معنا وکړي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– ښوونکی د لوست دريم تمرين زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | ۱۰ دقيقې |

**لوست: څلور ویشتم (دویمه برخه)**

**سرلیک:** سوق القرية.

**مخ: ۴۵** دقیقي (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

– مبتدا او خبر وپیژني او په دې پوه شي چې کله مبتدا جمع غیر عاقل وي خبر یې مفرد او مؤنث راځي.

– د ماضي صیغه د جمع مذکر غائب په جمله کې استعمال کړای شي.

د ښوونکي لپاره اِضافي معلومات

**د مد حروف:** عبارت دي له ساکنې یا ما قبل یې مکسور، ساکن واو ما قبل یې مضموم او ساکن الف ما قبل یې مفتوح.

۲ – جمع مذکر غائب په ماضي فعل کې: په زیاتوالي د ساکن واو ما قبل یې مضموم او الف وروسته د واو چې علامه د جمع ده جوړیږي لکه: ذهب د دې جمع: ذهبوا ده.

کله چې مبتدأ غیر عاقل وي خبر یې مفرد مؤنث پرته د (ال) څخه راځي لکه: الدروس سهلة چې آخر د مفرد کې یې تاء مربوطه (ة) اِضافه کیږي تر څو د دې کلمې څخه مؤنثه جوړه شي.

**د کلماتو معنا:** فَحَصَ: معاینه یې کړ – ملف: دوسیه.صیدلیة: درملتون.قماش: رخت.حانوت: دکان.المصرف: بانک.

**د لوست میتودونه:** مناقشه – سوال او ځواب –تکرار – یو کسیز – ډله ییز.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | – محترم ښوونکی وروسته د سلام، احوال پوښتنې، د کورنۍ دندې له کتنې او د ټولګي له تنظیم څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د تیر لوست متن سم لوستلی او معنا کولی شي؟<br>– ښوونکی د لوست څلورم تمرین په زده کوونکو د محاورې په ډول اجرا کوي په داسې ډول سره چې یو زده کوونکی سوال کوي او بل یې ځواب ورکوي، ښوونکی د لوست تمرین په چوپتیا سره لولي او د تمرین دکلماتو مفرد د لوست د متن څخه پیدا کوي او په مقابل د جمع کلماتو کې یې لیکي. | |
| ۳۰ دقیقي | – ښوونکی د مبتدا او خبر په هکله زده کوونکو ته لنډ معلومات ورکوي او وروسته د لوست شپږم تمرین په زده کوونکو د مناقشې په ډول اجـراء کوي په داسې ډول چې زده کوونکي په نوبت سره د ټولګي مخې تـه راغواړي او ورته لارښوونه کوي چې د قوس په منځ کې کلمو ته خبـر مفرد مؤنث جوړ کړي لکه: الکتب غالیة.<br>ښوونکی اووم تمرین په زده کوونکو د تختې په مخ کار کوي او د ماضي فعـل د | |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | جمع مذکر صیغې د جوړولو طریقه او د جمع ضمیر (هـــم) اِســـتعمال دوی تـــه بیانوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې اتم تمرین ولولي او وروسته د (أ) قایمې جملې د (ب) قایمې مناسبو جملو سره د پنسل پـــه واســـطه وصل کړي.<br>– ښوونکی د نهم تمرین کلمې زده کوونکو ته لولي او مفهوم یې دوی سره شیږي او ورڅخه غواړي چې دغه کلمات سره د معنا په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>**کورنۍ دنده:**<br>– ښوونکی د (الواجب المنزلي) تمرین زده کوونکو تـــه کـــورنۍ دنـــده ورکوي. | |

**لوست**: **پنځه ویشتم (لومړۍ برخه)**

**سرلیک:** أخطر الأمراض.

**مخ:** ۹۹

**وخت:** ۴۵ دقیقې (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د محاورې متن سم ولوستلی شي.
- اسم تفضیل وپیژني.
- د (ما) استفهامیه استعمال په جملو کې و پیژني.

**ښوونکي ته اِضافي معلومات**

د اِسم تفضیل په هکله په (۱۸) لوست کې معلومات ورکړل شوي دي.

**د کلماتو معنا:** دعا: ویې غوښته.أخطر: ډېر خطرناک.لا بُدَّ: باید.سنقوم: ژرده اِقدام به وکړو.الحبر: دوات.رد: ځواب یې ورکړ.

**د لوست میتودونه:** نمونه یې لوستل – حوار – تکرار – سوال او ځواب – یو کسیز – ډله ییز.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب – تخته – تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی وروسته د سلام، احوال پوښتنې، کورنۍ دندې او د ټولګي له تنظیم څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک کولای شي د (القراء، الأسواقُ، الاِخوة) کلمو مفرد ووایې ؟ | |
| ۳۰ دقیقې | – ښوونکی وروسته د ځواب موندلو څخه د نوي لوست سرلیک چې (أخطر الأمراض) دی د تختې په مخ لیکي او وروسته د لوست متن په مناسب آواز سره لولي او له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په چوپتیا سره واوري.<br>– ښوونکی د دویم ځل لپاره لوست او جملې معنا کوي او په عین حال کې زده کوونکو ته مشکل کلمات د مناقشې په ډول د تختې په مخ لیکي او معنا کوي یې.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې یو ځل لوست په چوپتیا سره ولولي.<br>– ښوونکی د لوست متن په څلورو تنو زده کوونکو تکراروي، غلطې او اشتباهات یې اصلاح کوي او دوی تشویقوي. | |

| | | |
|---|---|---|
| | - ښوونکی د لوست اول تمرین په بعضې زده کوونکو د تختې په مخ حل کوي په داسې ډول سره چې هره کلمه په یاد ولري او په متن کې یې پیدا کړي او د معنا د موندلو په وخت باید خپلو کې سره مشوره وکړي.<br>- ښوونکی د زده کوونکو څخه دوه تنه انتخابوي چې یو تن یې د دویم تمرین سوالونه مطرح کړي او بل یې دغو سوالونو ته ځوابونه ووايي.<br><br>**ارزونه:**<br>- څوک د (أخطر الأمراض هو الجهل) جملې معنا ویلای شي؟<br>- څوک کولای شي د (الحبر، لا بد) معنا ووايي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>- زده کوونکي اول او دویم تمرین د (۱۰۰) صفحې د کتاب په خپلو کتابچو کې حل کوي؟<br><br>**د لوست پیغام:**<br>ښوونکی باید د علم او پوهې د أهمیت او د جهل او ناپوهۍ په هکله په ټولنه کې زده کوونکو ته پوره معلومات ورکوي او په دې موضوع روښنایي اچوي او دا هم ورته روښانه کوي چې د خدای جل جلاله په وړاندې پوهنه او علم د انسانانو په منځ کې د فضیلت او بهترۍ یو معیار دی او همدارنګه پوهنه او علم د تکنالوژۍ او اقتصادي پرمختګ سبب دی. | ۱۰ دقیقې |

**لوست:** پنځه ويشتم (دويمه برخه)

**سرليک:** أخطر الأمراض.

**مخ:** ۱۰۰ – ۱۰۲

**وخت:** ۴۵ دقيقي (يو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- اسم ضمير ته اِضافه کړای شي.
- اسم تفضيل په جمله کې استعمال کړای شي.
- د همزې د ليکلو طريقه د واو او نبرې د پاسه زده کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

– هر کله چې د کلمې په آخر کې همزه مضمومه وي نو د واو په حرف د پاسه ليکل کيږي او که چيرته مکسوره وي د نبرې د پاسه ليکل کيږي لکه څرنګه چې په تمرينونو کې ليکل شوې ده.

**د کلماتو معنا:** فناء البيت: حويلۍ (انګړ) أطول: ډير اوږد.مسجل: تيپ.المعجم: د لغتونو کتاب.عمال: کاريګران.

**د لوست ميتودونه:** مناقشه –تکرار – سوال او ځواب – يو کسيز.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تباشير، تخته.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقي | – ښوونکی وروسته د سلام، احوال پوښتنې، کورنۍ دندې له کتنې او د ټولګي له تنظيمولو څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي.<br>– څوک کولای شي د تير لوست څلور کرښې ولولي او معنا يې کړي؟ | |
| ۳۰ دقيقې | – ښوونکی څلورم تمرين په زده کوونکو حل کوي په داسې حال چې د اول تمرين کلمات په تخته ليکي او وروسته د زده کوونکو څخه غواړي چې دغو کلمو ته ترتيب ورکړي او بيا ورته لارښوونه کوي چې دغه مرتبې کلمې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>– ښوونکی پنځم تمرين په زده کوونکو حل کوي په داسې ډول چې اول هغه جملې چې اسم ظاهر ته مضاف وي د تختې په مخ د اسم ظاهر په ځای مناسب ضمير (هـ، ها) وضعه کوي تر څو پوه شي چې تر کومه حده پورې دوی کولای شي ضميرونو ته د أسماوو سره مطابقت ورکولی شي.<br>– ښوونکی شپږم تمرين زده کوونکو سره مناقشه کوي او د همزې د مختلفو صورتونو د ليکلو په هکله ورته معلومات ورکوي او په دې موضوع بحث کوي او زده کوونکو څخه غواړي چې دغه تمرين | |

| | | |
|---|---|---|
| | خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– ښوونکی دوه تنه زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي چې یو یې د اووم تمرین د دوو جملو څخه سوال وکړي او دویم یې جواب ورکړي وروسته دویم زده کوونکی د اول زده کوونکي څخه سوال کوي او هغه ورته ځواب وایي او ښوونکی یې ملاحظه کوي غلطې او اِشتباهات یې اِصلاح کوي او تشویق کوي یې.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی د لوست د اتم تمرین حل زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او د حل کولو طریقه ورته ښیي. | |
| ۵ دقیقې | | |

**لوست:** **شپږ ویشتم (لومړۍ برخه).**

**سرلیک:** نشید (یا اِله العالمینا).

**وخت:** ۴۵ دقیقي (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- ترانه سمه ولولي او معنا يې وکړای شي.
- د ترانې د مشکلو کلمو په معنا پوه شي.
- ترانه د خپل عربي متن سره حفظ کړای شي.

**د کلماتو معنا:** مجیب: قبلوونکی.هب: راوبښه، راکړه.واحمنا: مونږ وساته.جَمّلنا: مونږ ښکلي او مزین کړه.رشاد: هدایت او **توفیق.المبین:** واضح.ښکاره: یبحث: تحقق کوي.

**د لوست میتودونه:** نمونه يې لوستل – تکرار – یو کسیز – ډله ییز.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر، ټیپ، کسټ، کاغذي چارټ لوحه.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | – محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې، د کورنۍ دندې له کتنې او د ټولګې له تنظیم څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک کولای شي د: التلفاز – فناءُ البیت – المسجل – عمّال – کلمو معنا وکړي.<br>– هڅوونکې پوښتنې د نوي لوست د سرلیک د پیدا کولو لپاره.<br>– ترانې ته په عربي کې څه وایي؟ | |
| ۳۰ دقیقې | – ښوونکی وروسته د ځواب موندلو څخه د نوي لوست سرلیک چې: النشید (یا اِله العالمینا) دی په غټ خط سره په تخته لیکي.<br>– ښوونکی دترانې متن په مناسب آواز سره لولي او زده کوونکو څخه غواړي چې د ده لوستلو ته غوږ کیږدي او د دویم ځل لپاره يې بیا لولي او زده کوونکي يې ورپسې تکرار کوي او دریم ځل ښوونکی ترانه یو یو بیت لولي او معنا کوي يې او مشکلي کلمې د معنا سره په تخته لیکي او زده کوونکي دغه نوې کلمې خپلو کتابچو کې لیکي<br>– ښوونکی وروسته د معنا د تکمیل څخه دوه تنه زده کوونکي د ټولګې مخې ته راغواړي چې لوست ولولي او غلطیانې يې اصلاح کوي، او تشویقوي يې.<br>– ښوونکی چې کله د زده کوونکو د سم لوستلو څخه مطمئن شو دوه تنه | |

| | | |
|---|---|---|
| | زده کوونکي چې ښه آواز لري د ټولګي مخې ته راغواړي او د ترانې لوستلو سمه طریقه ورته ښيي او هغوی يې تمرين کوي.<br>– ښوونکی اول تمرين په پنځو تنو زده کوونکو د ورکړل شوو کلمو نه په استفادې سره داسې حل کوي چې زده کوونکي مناسبې کلمې انتخاب او په جملو کې يې استعمال کړي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک ترانه په سمه توګه لوستلی شي؟<br>– څوک د: مجيب، هب، و احمنا، کلمې معنا کولی شي؟<br>– څوک دغه جمله تکميلولی شي: يا رب......الی طلب العلم؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دويم تمرين د ۱۰۴ صفحې خپلو کتابچو کې حل کړي او د اول مثال په څير څلور جملې د خپل ځان څخه جوړې کړي.<br><br>**د لوست پيغام:**<br>ښوونکی د ترانې او سرود په هکله خصوصاً په عربي ژبې سره معلومات وړاندې کوي او أهميت يې بيانوي چې ترانه او سرود په هره ژبه چې وي د هغې ژبې په يادولو کې غټ رول لري که چيرته مونږ د کومې ژبې شعر ښه ياد کړ کولی شو چې نثر يې په ښه آواز او آسانه توګه زده کړو. | ۱۰<br>دقيقې |

**لوست:** شپږ ویشتم (**دویمه برخه**).

**سرلیک:** النشید.

**مخ: ۱۰۳**

**وخت ۴۵ دقیقي** (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- دامر فعل په جملو کې استعمال کړای شي.
- د جمع مذکر سالم دجوړولو طریقه وپیژني.
- د دعا کولو طریقه او اسلوب په ژبه یاد کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د امر فعل د مضارع فعل څخه د مضارعت د حرف حذفولو وروسته جوړیږي.

**تعریف:** امر هغه کلمه ده چې د مخاطب فاعل څخه د کار په غوښتلو دلالت کوي.

جمع مذکر سالم: هغه اسم دی چې د دوو څخه په زیات دلالت کوي چې واو او نون او یا یاء او نون یې په اخر کې علاوه کیږي.

د جمع مذکر سالم د اعراب علامات: رفع یې په واو او نصب او جر یې په یاء سره وي لکه: مسلم – مسلمون – اِنَّ المسلمین.

**د کلماتو معنا:** فتح: خلاص کړی یې ؤ.بعثَ: لیږلی یې ؤ.سکتَ: چوپ شو.

**د لوست میتودونه:** تکرار – مناقشه – سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی وروسته د سلام، احوال پوښتنې، د کورنۍ دندې له کتنې او د ټولګي له تنظیم څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک کولای شي د تیر لوست ترانه په یادو ووایي ؟ | |
| ۳۰ دقیقې | – ښوونکی د لوست د دویم تمرین دوه مثالونه دبیلګې په توګه زده کوونکو ته حل کوي او د فعل امر دجوړولو طریقه ورته واضح کوي: مثلاً: فَتَحَ، یَفتَحُ، اِفتَح نَشَرَ، یَنشُرُ، اُنشُر، بَعَثَ، یَبعَثُ، ابعَث، نَصَرَ، یَنصُرُ، اُنصُر.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته توضیحات ورکوي چې د امر فعل د مضارع فعل څخه داسې جوړیږي که چیرته د مضارع فعل د عین کلمه مضموم وي د امر فعل همزه او د عین کلمه به یې هم مضموم وي او که چیرته د مضارع فعل د عین کلمه مفتوح او یا مکسور | |

| | | |
|---|---|---|
| | وي، نو د امر فعل همزه به هم مکسوره وي او د امر فعـــل عـــين کلمه به د مضارع فعل دعين کلمې مطابق مفتوح او يا مکسور وي او پاتي مثالونه د تمرين په زده کوونکو حل کوي او مرسته ورسره کوي.<br>– ښوونکی د جمع مذکر سالم په هکله زده کوونکو تـــه معلومـــات ورکوي او د جوړولو طريقه يې ورته بيانوي او وروسته د څلـــورم تمرين څلور مثالونه زده کوونکو ته د بيلګې په توګه حـــل کـــوي مثلاً: العالم:العالمون.المؤمن: المؤمنون.الواقفُ: الواقفون.المعلم: المعلمون.<br>– او نور مثالونه په زده کوونکو حل کوي.<br>– ښوونکی پنځم تمرين زده کوونکو ته لولي او معنا کـــوي يـــې او وروسته دوه تنه زده کوونکي د ټولګې مخې ته راغواړي چې يو يې سوال کوي او بل يې ځواب ورکوي او دغه کار په څو تنـــو زده کوونکو تکراروي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته د دعا کولو سمه طريقه ښايي او ښوونکی د لوست شپږم تمرين په زده کوونکو لولي او ليکي.<br>– ښوونکی د اووم تمرين دوه مثالونه زده کوونکو ته حل کوي پـــه داسې ډول چې يوه يا دوه کلمې په جملـــو کـــې اســـتعمالوي او وروسته د نورو څخه غواړي چې پاتې کلمې جملو کې اســـتعمال کړي او پخپله يې په تخته وليکي او زده کوونکو څخه غواړي چې دغه جملې خپلو کتابچو کې وليکي.<br>– رِبّي وفقني بعلم – ربنا هب لي الصحة و السعادة.<br>– ښوونکی د اتم تمرين کلمې په تخته ليکي او بيا د معنا په هکله يې زده کوونکو سره بحث کوي او په تخته يې ليکي او زده کوونکي يې معنا په خپلو کتابچو کې ليکي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی د (الواجب المنزلي) تمرين زده کوونکو تـــه کـــورنۍ دنـــده ورکوي او هدايت ورکوي چې د مفرد امر په جمع تبديل کړي. | ۵ دقيقې |

**لوست: اوه ویشتم (لومړۍ برخه).**

**سرلیک:** عيادة المريض.

**مخ:** ۱۰۷.

**وخت:** ۴۵ دقيقي (يو درسي ساعت ).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- محاوره په سمه توګه ولوستلای او معنا کړای شي.
- محاوره عملاً اِجراء کړای شي.
- دالف او فتحې تلفظ سم اداء کړای شي.

**د ښوونکی لپاره اضافي معلومات:**

د اسم فاعل اطلاق په هغه چا کيږي چې کار تر سره او انجام کړي. د اسم فاعل صيغه د درى حرفي ماضي فعل څخه په وزن د (فاعل يا فاعلة) راځي لکه: ناصر – ضارب – کاتب او... او که چيرته ماضي فعل د دريو تورو څخه زياد ولري نو په دی حالت کې يې اسم فاعل د دی د مضارع فعل په وزن راځي په دومره فرق سره چې د مضارعت د حرف په ځای مضموم ميم راوړو او د اخير نه ما قبل حرف ته کسره ورکوو او تنوين ورسره زياتوو لکه:

مجتنب – متقبل – منتصر.

**د کلماتو معنا:** حزيناً غمجن.أظُنُّ: ګمان کوم.ذاهب: تلونکی.وَصَلَ: ورسيد.حرث: قلبه يې کړه عيادة: د مريض پوښتنه. تحضر: حاضريږي.

**د لوست ميتودونه:** نمونه يې لوستل –محاوره – سوال او ځواب – يو کسيز – ډله ييز.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير، کاغذي لوحه (چارت) چې محاوره ورباندې ليکل شوې وي.ټيپ، کستونه د اِمکان په صورت کې.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقي | – محترم ښوونکی وروسته له سلام اچولو، احوال پوښتنې، د کورنۍ دندې له کتنې او د ټولګي له تنظيم څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي:<br>– څوک د: نَصَرَ، فَتَحَ، فَهِمَ، عَلِمَ، مضارع او امر ويلای شي؟<br>– څوک د: المعلمُ، المُجاهدُ، الجالسُ، الواقفُ د کلمو جمع مذکر سالم ويلای شي؟ | |
| ۳۰ دقيقې | – د نوي لوست د سرليک لپاره هڅوونکي پوښتنې.<br>– څوک ويلای شي د مريض پوښتنې ته په عربي ژبه کې څه وايي؟<br>– ښوونکی وروسته د ځواب موندلو نه د نوي لوست سرليک چې (عيادة المريض) دی د تختې په مخ ليکي او نوی لوست د لوی الله جل جلاله په نوم سره پيل کوي او زده کوونکي خپلوکتابونو ته متوجه او د لوست متن | |

دوی ته د نمونې او بیلګې په ډول لولي او ښوونکی لوست د دویم ځـــل لپاره جمله په جمله لولي او معنا کوي يې او همدا رنګه مشکلې کلمې په تخته لیکي او په مقابل کې يې معنا هم لیکي.

– ښوونکی دوه دوه تنه زده کوونکي د خپل ځای څخه اوچوتوي په داسې ډول چې محاوره د نمایش په شکل تکرار وي تر څو د زده کوونکو د سم تلفظ او پوهاوي څخه مطمئن شي.

– ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د ورکړل شوو کلمـــاتو مترادفې کلمې د لوست د اول تمرین د قوسونو د منځ څخه انتخاب کړي او دوی ته د مشورې کولو وخت ورکول کیږي.

– ښوونکی دزده کوونکو څخه د لوست د دویم تمرین سوالونه کوي او هغوی ته وایي چې د لوست د متن نه په استفادې سره سوالونو ته ځوابونه ووایي.

– ښوونکی د اسم فاعل په هکله زده کوونکو ته معلومـــات ورکـــوي او وروسته د دریم تمرین دوه مثالونه د نمونې او بیلګې په ډول سره دوی ته حل کوي مثلاً:

دَخَلَ: يدخُلُ، داخِل، قَدِمَ، يَقدِمُ، قَادِم، خَرَجَ، يَخرُجُ، خارج.او د تمـــرین پاتې مثالونه په زده کوونکو حل کوي.

**ارزونه:** ۱۰ دقیقې

- څوک د: أظُنُّ – سأحضرُ – العيادةُ.کلمو معنا کولای شي؟
- څوک د لوست متن سم لوستلی شي؟
- څوک د: خرجَ، دَخَلَ، کلمو څخه اسم فاعل جوړولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

ښوونکی د لوست دویم تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي.

**د لوست پیغام:**

د ناروغ پوښتنه د اسلام په دین کې يو اخلاقي ارزښت لري چې په ټولنـــه کې د محبت او نیکو روابطو وسیله ګرځي او د ناروغ په روغتیايي حالت هم تاثیر لري.

ښوونکی باید د لوست د تشریح په وخت زده کوونکي د ناروغ پو ښتنې کولو ته تشویق کړي تر څو زمونږ د دین دغه قیمتې سنت زمونږ په ملـــت کې په ښه ډول ژوندی پاتې او خورشي.

**لوست**: **اوه ویشتم** (**دویمه برخه**).

**سرلیک:** عيادة المريض.

**مخ:** ۱۰۹ – ۱۱۰.

**وخت :** ۴۵ دقیقي (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د مضارع فعل څخه اسم فاعل جوړ کړای شي.
- د اِستفهام ادوات په جملو کې اِستعمال کړای شي.
- په خپلو منځو کې د ناروغ د زیارت په هکله محاوره وکړای شي.

**ښوونکي ته اِضافي معلومات :**

**اسم فاعل:** عبارت له هغه اسم څخه دی چې د فعل څخه اشتقاق شوی او د هغه کس په وصف چې همغه فعل او کار انجاموي اطلاق کیږي لکه: کاتب – چې د هغه کس په وصف دلالت کوي چې د کتابت عمل تر سره کوي.

**د کلماتو معنا:** حمّی: تبه.صداع: سر دردي.سهر: بي خوبي (ویښ پاتي کیدل).

**د لوست میتودونه:** مناقشه – سوال او ځواب – یو کسیز.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر :**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي<br><br>۳۰ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام اچولو ، احوال پوښتنې ، د کورنۍ دندې له کتنې او ټولګې له تنظیمولو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي .<br>– ښوونکی د لوست د څلورم تمرین کلمې زده کوونکو ته لولي او معنا کوي او له دوې څخه غواړي چې کلمې په ده پسې تکرار کړي. وروسته ورڅخه غواړي چې کلمې د حرکاتو په مراعاتولو سره ولیکي او همدارنګه دوی ته د الف او فتحې په تلفظ کې توپیر بیانوي .<br>– ښوونکی د پنځم لوست تمرین دوه خبري جملې په استفهامیه جملو تبدیلوي .<br>۱ – اِلی أینَ أنت ذاهب ؟ ماذا تکتبُ ؟<br>او له زده کوونکو څخه غواړي چې پاتې جملې په استفهام سره تبدیلې کړي .<br>– ښوونکی د لوست شپږم تمرین د تختې په مخ لیکي او له | زده کوونکي د پنځم تمرین سوالونه جوړوي .<br>۳ – أین بیتُکَ ؟<br>۴ – متی تلعَبُ ؟ |

| | | |
|---|---|---|
| | زده کوونکو څخه غواړي چې دوه ځله يې په خپلو کتابچو کې وليکي. وروسته دوه تنه تختې ته نژدې راغواړي او لاربښوونه ورته کوي چې نومورې تمرين له کتاب نه پرته په تخته وليکي او املاء پرې کوي څو چې زده کوونکي عربي ښه املا وليکی شي .<br>– ښوونکی د اووم تمرين جملې زده کوونکو ته لولي او معنا کوي يې. وروسته تمرين په زده کوونکو د سوال او ځواب په شکل اجراء کوي .<br>– ښوونکی زده کوونکو ته پنځه دقيقې وخت ورکوي چې له خپلو ځانونو څخه په هغه ډول جملې چې په اتم تمرين کې يې نمونه ورکړل شوې جوړې کړي وروسته له دې له هر زده کوونکي څخه غواړي چې ليکل شوې جملې ولولي او دی ورته د جملو د جوړښت سمونه کوي او تشويقوي يې .<br>– ښوونکی د نهم تمرين کلمې له معنا سره په تخته ليکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې هغه په خپلو کتابچو کې وليکي او بيا څو ځله هغه لولي چې معنا يې ښه زده او په ياد پاتې شي . | ٥ – لماذا خرجتَ ؟ |
| ٥ دقيقې | **کورنۍ دنده :**<br>ښوونکی د ( الواجبُ المنزلي ) تمرين زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په توګه ورکوي . | |

**لوست**: **اته ويشتم (لومړۍ برخه)**.

**سرليک:** سيارة الأجرةِ.

**مخ:** ۱۱۱

**وخت ۴۵** دقيقي (يو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- د لوست متن سم ولوستلای او معنا کړای شي.
- محاوره عملاً اجرا کړای شي.
- د اِستفهام اداة د مقدار لپاره (کم) په جملو کې استعمال کړای شي.
- د محاورې او سوال او ځواب طريقه چې د مسافر او د موټر د چلوونکي تر منځ صورت نيسي زده کړي.
- د کلماتو معنا: سيارة الأجرةِ: ټيکسي موټر.جنب الشارع: د سرک غاړه.فندق: هوټل.السائقُ:موټر چلوونکی.تفضّل: مهرباني وکړه.
- د لوست ميتودونه: سوال او ځواب – يو کسيز – تکرار.
- د لوست مرستندويه توکي: کتاب، تخته، تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقي | – محترم ښوونکی وروسته د سلام اچولو، احوال پوښتنې، د ټولګې تنظيم او کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي:<br>– څوک کولای شي دغه خبريه جمله په استفهاميه تبديله کړي (کنتُ مريضاً).<br>– هڅوونکي پوښتنې دنوي لوست د سرليک د پيدا کولو لپاره.<br>– څوک ويلای شي ټيکسي موټر ته په عربي ژبه کې څه وايي؟ | |
| ۳۰ دقيقي | – ښوونکی وروسته د ځواب موندلو نه د نوي لوست سرليک چې (سيارةُ الأجرةِ).دی په غټ خط سره د تختې په مخ ليکي او وروسته د لوست متن په لوړ آواز سره لولي او له زده کوونکو څخه غواړي چې خپلو کتابونو ته متوجه شي او لوست ته غوږ و نيسي.ښوونکی د لوست متن د دويم ځل لپاره بيا لولي او زده کوونکي يې له ده سره تکراروي او په عين وخت کې جملې معنا کوي.<br>– ښوونکی څو تنه زده کوونکي انتخابوي چې د لوست متن د محاورې | |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقي | په ډول اجراء کــړي او د دوی لوســتل اصــلاح کــوي او دوی تشویقوي.<br>– ښوونکی د دویمې شمارې تمرین د زده کوونکو په واسطې په تختــه حل کوي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک دې سوال ته ځواب ویلای شي (فیما رکب هارون؟)<br>– څوک دا لاندې کلمې ترتیب او له هغو څخه مفیده جمله جوړولای شي: کابل، اُریدُ، فندق.<br>– څوک دغه خبري جمله په استفهامي جملې بــدلولی شــي (الأجــرة مائةأفغاني).<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو د اولې شمارې تمرین خپلو کتابچوکې حل کوي. | زده کوونکي دویم تمــرین داسې حل کوي.<br>۱ – رکب هــارون ســیارة الأجرة.<br>۲ – الفنــدقُ قریــب مــن البنک.<br>۳ – أریدُ فندق کابل. |

**لوست: اته ویشتم (دویمه برخه).**

**سرلیک:** سيارة الأجرةِ.

**مخ: ۱۱۳**

**وخت: ۴۵ دقيقي (يو درسي ساعت).**

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- د فعليه جملې په جوړولو وتوانيږي.
- د (أن) کلمه په جملو کې استعمال کړای شي.
- همزه قطع و پيژني او په جملو کې يې په اِستعمال پوه شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

فعليه جمله: دهغې جملې څخه عبارت ده چې په فعل سره شروع شوې وي لکه: كتب الطالب الدرس.

أن: د نصب له ادواتو څخه دی او په فعل مضارع داخليږي او هغه منصوب کوي لکه: أريد ان أذهبَ، ای أريد الذهابَ.

**د کلماتو معنا:** المتحفُ: موزيم.يُمنــعُ: منــع کيــږي.الحمــراء: ســور رنګــی.يــدفعُ الفلــوسَ: پيســي ورکــوي. مفترق الطريق: څلور لاری.

**د لوست ميتودونه:** مناقشه، سوال او ځواب، يو کسيز، ډله ييز.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقي | – محترم ښوونکی د سلام اچولو، احوال پوښتنې، د کورنۍ دنــدې لــه کتنې او د ټولګي له تنظيمولو څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي.<br>– څوک دغه کلمې معنا کولای شي: الأجرة، فندق، جنب الشارع؟ | |
| ۳۰ دقيقي | – ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپلو کتابونو ته په دقيقه توګه متوجه شي اومناسبې کلمې د قوسونو له منځ څخه انتخاب کړي او خالي ځايونه ورباندې د پنسل په واسطه ډک کړي او وروسته څــو تنو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې هغه په لوړ آواز سره ولولي او که غلطي يې درلوده هغه ورته اصلاح کوي او زده کوونکي هــم خپــل اِشتباهات دا ستاد له مخې تصحيح کوي.<br>– وروسته ښوونکی زده کوونکي په مختلفوګروپونو ويشــي او دنــده ورکوي چې پنځم تمرين خپلو منځو کې مناقشه او بيا يې په کتــابچو کې ليکي او وروسته له هغې ښوونکی زده کوونکي په څو ډلو ويشي او ورڅخه غواړي چې د هغه نص په هکله چې پنځم تمرين کې قــرار لري بحث وکړي او د همزه قطع او وصل اشکالات روښانه کړي او د | |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | همزه قطع علامات په مناسبو ځایو کې ځای په ځای کړي وروسته د هرې ډلې استازی د تختې مخې ته راځي او هغه کلمې چې همزه قطع ورکول کیږي په تخته لیکي او د دوی غلطي او اِشتباهات اصلاح کیږي ښوونکی زده کوونکي تشویقوي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د شپږم تمرین له مخې هر دوه تنه په خپله مشوره سره د (أن).څلور جملې ولیکي<br>- ښوونکی څو تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي چې د اووم تمرین ورکړل شویو افعالو مخې ته (أن) ورکړي او لازم تغیرات پکې راولي.<br>- ښوونکی د نهم تمرین کلمې په دوو تنو زده کوونکو په لوړ آواز سره لولي او معنا کوي یې.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د (الواجب المنزلي) تمرین خپلوکتابچو کې ولیکي. | زده کوونکی پنځم تمرین لیکي.<br><br>زده کوونکي د همزه قطع په هکله بحث کوي. |

**لوست**: **نهه ویشتم**: (**لومړۍ برخه**).

**سرلیک:** الفندق.

**مخ:** ۱۱۵

**وخت:** ۴۵ دقیقي (یو درسي ساعت )

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- د محاورې متن سم ولوستلی شي.
- محاوره د سوالونو سره عملاً اجراء کړای شي.
- زده کوونکي باید هغه شیان چې عدد او معدود سره تعلق لري یاد کړي.

**د ښوونکی لپاره اضافي معلومات:**

په عربي ژبه کې د یو او دوه عدد مطابق د معدود وي لکه: کتاب واحد.کتابان اثنان.لیکن که عدد له درې څخه تر لسو پورې وي مخالف د معدود راځي په داسې ډول چې که معدود مذکر وي عدد یې مؤنث راځي او که معدود مؤنث وي عدد یې مذکر راځي لکه: خمسة کتب، ثلاث طالبات او معدود د درې نه تر لسو معمولاً جمع وي او په جمله کې مضاف واقع کیږي.

**د کلماتو معنا:**

الاستعلامات: سکرتریت (معلومات) الموظفُ: کار کوونکی.جواز السفر: پاسپورت.الاستمارةُ: فورمه: اُجرة: کرایه. مائة: سل.

**د لوست میتودونه:** نمونه یې لوستل: محاوره – سوال او ځواب – یو کسیز – تکرار.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب – تخته – تباشیر – ټیپ – کېښتونه د اِمکان په صورت کې.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | – محترم ښوونکی د سلام اچولو، احوال پوښتنې، د کورنۍ دندې له کتنې او د ټولګې له تنظیم څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک کولای شي د تیر لوست پنځم تمرین د (۱۱۳) صفحې سم ولولي؟ | |
| ۳۰ دقیقي | – هڅوونکې پوښتنې د نوې لوست د سرلیک پیدا کولو لپاره.<br>– هوټل ته په عربي ژبه کې څه وایي؟<br>– ښوونکی وروسته د ځواب موندلو څخه د نوي لوست سرلیک چې (الفندقُ) دی په غټ خط سره په تخته لیکي.<br>– ښوونکی د لوست متن په لوړ آواز سره لولي او زده کوونکـــو | |

| | | |
|---|---|---|
| | څخه غواړې چې د ده لوستلو ته غوږ کيږدي او د دويم ځـــل لپاره بيا لوست لولي او معنا يې بيانوي.<br>– ښوونکی دلوست د متن مشکلې کلمې د تختې په مخ ليکي او د معنا پيدا کولو څخه هغوی ته لارښوونه کوي چې مشکلې کلمې د معنا سره په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>– ښوونکی څو تنه زده کوونکي مکلف کوي چې د محاورې پـــه ډول د لوست متن ولولي، او ښوونکی يې ورته اصلاح کوي تر څو عربي کلمې سمې تلفظ او نطق کړي.<br>– ښوونکی د اول تمرين سوالونه په تخته ليکي او زده کوونکو ته يې د مناقشې په ډول ځوابونه وايي او بيا دغه ځوابونه د تختې په مخ ليکي او په زده کوونکو يې څو ځله تکراروي او وروســـته دنده ورکوي چې سوالونه سره د ځوابونو خپلو کتـــابچو کـــې وليکي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک د (يقفُ) او (يضعُ) فعل امر په تخته ليکلی شي؟<br>– څوک کولای شي د دې جملې ځواب ووايي (أين جواز سفرک؟)<br>– څوک کولای شي د (غرفة – استمارة – جواز السفر) کلمې معنا کړي؟<br><br>**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د ۱۱۴ صـــفحې دويـــم تمـــرين خپلوکتابچو کې حل کړي. | ۱۰ دقيقې |

**لوست**: **نهه ویشتم** (**دویمه برخه**).

**سرلیک:** الفندقُ.

**مخ:** ۱۱۷

**وخت:** ۴۵ دقیقي (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- سوالونو ته ځواب ورکړای شي.
- د معتل فعل څخه د امر فعل جوړ کړای شي.
- هغه کلمې چې ځنې حروف پکې نه تلفظ کیږي و پیژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

معتل فعل له هغه فعل څخه عبارت دی چې د علت حرف یې په اول د کې وي حرف مضارع یې حذف او آخر یې ساکن کیږي لکه: یقِفُ قِف، یضعُ، ضع.

**د کلماتو معنا:** وضعَ: کېښود.وصلَ: ورسیده.سعر.قیمت (بیه) وجبة: د یو وخت ډوډی، وثبَ: ټوپ یې وواهه.

**د لوست میتودونه:** یوکسیز – تکرار – سوال او ځواب.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| | – محترم ښوونکی د سلام اچولو، احوال پوښتنې، د کورنۍ دندې له کتنې او د ټولګي له تنظیم څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. | ۵ دقیقي |
| | – ځوک د دې جملې معنا ویلای شي (کم أجرةُ الغرفة لیوم واحد)؟<br>– ښوونکی دریم تمرین په زده کوونکو اِجـراء کـوي او ورڅخـه غواړي چې یې د د امر د فعلونو پیدا کولو څخه وروسـته د هغـو ټول حالات په یوه جدول کې خپلو کتابچو ته منتقل او ولیکي.<br>– ښوونکی څلورم تمرین د محاورې په ډول پـه دوه تنـو زده کوونکو اجراء کوي او که زده کوونکو غلطي او اشتباه درلوده اصلاح کوي یې او په عین وخت کې دوی تشویقوي.<br>– ښوونکی د هغه څه نه وړاندې زده کوونکي په دې پوهوي چې ځینې داسې کلمې دي چې په هغو کې حروف لیکل شـوي او تلفظ یې نه کیږي او همدارنګه ځینې کلمې دي چې حروف یې تلفظ کیږي مګر لیکل یې نه کیږي.او وروسته دری تنـه زده کوونکي په نوبت سره مکلف کـوي چـې د پـنځم تمرین | ۳۰ دقیقي |

| | | |
|---|---|---|
| | محتویات په لوړ آواز ولولي او دی د دوی د لوستل اصلاح کوي.<br>– ښوونکی زده کوونکو ته پنځه دقیقي وخت ورکوي چې هر یو په خپلو کتابچو کې څلور جملې ولیکي د (رقم) کلمه پکې استعمال کړي او بیا ورڅخه غواړي چې دغه په ټولګي کې ولولي او دی ورته غلطي او اِشتباهات اصلاح کوي.<br>– ښوونکی د لوست اووم تمرین په دوه تنو زده کوونکو لولي او نورو زده کوونکو ته د دې په تکرار سر ه لارښوونه کوي او همدارنګه زده کوونکو ته دنده ورکوي چې دا خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– ښوونکی د لوست اتم تمرین په دوه تنو زده کوونکو لولي او نورو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې دا خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– ښوونکی دلوست اتم تمرین په دوه تنو زده کوونکو حل کوي په داسې ډول سره چې یو یې هغه عدد چې په حروفو لیکل شوی لولي او بل یې صحیح ځواب په عدد ورکوي او غلطیانې یې اصلاح کوي.<br>– ښوونکی دلوست نهم تمرین په زده کوونکو لولي او معنا یې زده کوونکو ته وایي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک دغه سوال ته ځواب ورکولی شي؟ تفطر یا أخي؟<br>– څوک کولای شي (ثمانیة و ستون) په عدد سره ولیکي؟<br>– څوک د (سلّم) کلمې معنا ویلای.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– ښوونکی د الواجب المنزلي تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او د خالي ځایونو د ډکولو طریقه ورته بیانوي. | ۱۰ دقیقي |

**لوست**: دېرشم (**لومړۍ برخه**).

**سرليک:** المطعمُ.

**مخ:** ۱۱۹

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- لوست په سمه توګه ولولي او معنا يې کړي.
- په معينه موضوع کې سمه محاوره وکړای شي.
- د مهمو خوړو نومونه زده کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

صفت هغه اسم دی چې د خپل موصوف څخه وروسته راځي او د اِعراب له نظره د هغه تابع وي، لومړي اسم ته موصوف او دويم ته يې صفت وايي، صفت خپل موصوف له يوه اړخ نه توصيف کوي او د هغه حالت توضيح کوي لکه: هذا عالم صادق: په دې جمله کې صادق صفت او عالم يې موصوف دی.

د کلماتو معنا: حان: ورسيده.الفاتورةُ: بل.الوجبةُ: خواړه.العصير: د مېوې اوبه.الفلوسُ: پيسې.

لو سمحتَ: بخښنه غواړم (لطفاً).

**د لوست ميتودونه:** نمونه يې قرائت – مناقشه – محاوره – يو کسيز – سوال او ځواب.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير او د محاورې چارت، تايپ او کاسيټ.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | محترم ښوونکی د سلام احوال پوښتنې، د ټولګي تنظيم او د کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي.<br>– څوک دغه سوال ته ځواب ويلای شي؟ (أين تسكنُ يا أخي).<br>– د أنګېزې پارول د نوي لوست عنوان د پيدا کولو لپاره.<br>– هوټل ته په عربي ژبه کې څه وايي؟ | |
| ۳۰ دقيقې | محترم ښوونکی د سم ځواب د موندلو وروسته د نوي لوست عنوان چې (في المطعم) دی په تخته ليکي او زده کوونکي کتابونو ته متوجه کوي او نوی لوست د الله جل جلاله په نوم سره پيل کوي.<br>او بيا نوی لوست په لوړ آواز سره لولي او د زده کوونکو څخه غواړي چې لوست ته غوږ و نيسي او خپلو کتابونو ته ځير شي او د ښوونکي لوستلو ته غوږ ونيسي.<br>– محترم ښوونکی لوست دويم ځل په لوړ آواز لولي او زده کوونکي يې ورپسې تکراروي.<br>ښوونکی دريم ځل د لوست مشکل کلمات په تخته ليکي او معنا کوي يې او | |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقي | بیا د مناقشې په ډول د لوست د معنا په باره کې بحث کــوي تــر څــو زده کوونکي په سمه توګه پوه شي او بیا محاوره په دوی باندې پدې ډول عملـــي کوي چې یو یې هارون او بل یې د موظف په نقش محاوره اجــرا کـــوي او ښوونکی یې تشویقوي.<br>– محترم ښوونکی یو مثال د لومړي تمرین څخه زده کوونکو ته حلوي او لکه چې حان د اِقترب په معنا او بیا لارښوونه کوي چې د تمرین مترادف کلمات د قوسونو څخه پیدا کړي او وېې لیکي.<br>– محترم ښوونکی د دویم تمرین په هکله د زده کوونکو څخه پوښتنه کوي او ځوابونه یې اوري.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک لوست په سمه توګه لوستلای شي؟<br>– څوک د دغې جملې معنا ویلای شي (هل ترید شیئاً آخر)؟<br>– څوک د (الوجبةُ– الفاتورة) کلماتو معنا ویلای شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی د لوست دویم تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنـــده ورکوي. | |

**لوست**: **دېرشم** (**دويمه برخه**).

**سرليک:** المطعمُ.

**مخ:** ۱۲۰ – ۱۲۲

**وخت:** ۴۵ دقيقي (يو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- د ډوډۍ خوړلو په وختونو پوه شي.
- مهموز افعال په مضارع تبديل کړي.
- د غوښتلو او خواهش په اُسلوبو پوه شي او هغه عملي کړي.
- موصوف ته صفت پيدا کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اِضافي معلومات**

مهموز فعل هغه فعل دی چې په پيل يا منځ يا پای کې همزه ولري لکه: أخذ، سأل، قرأ.

**د کلماتو معنا:** متی تفطر؟: څه وخت سبا ناری کوې؟ الحليبُ: شيدې.أين تتغدی؟ دغرمې ډوډۍ چيرته خورې؟ العَشَاءُ: د شپې ډوډۍ.اللحمُ المشوي:کباب.

**د لوست ميتودونه:** مناقشه – يوکسيزه – سوال او ځواب.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب، تخته، تباشير.

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقي | – محترم ښوونکی وروسته د سلام اچولو، احوال پوښتنې، کورنۍ دندې له کتنې او د ټولګې له تنظيم څخه وروسته دتير لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د (الوجبةُ – الفاتورةُ – صحن) کلمو معنا ويلای شي. | |
| ۳۰ دقيقي | – محترم ښوونکی د لوست دری جملې زده کوونکو ته لولي او معنا کوي يې او بيا يې هغوی لولي او لارښوونه ورته کوي چې جملې پـه خپلـو کتابچو کې وليکي.<br>– محترم ښوونکی څلورم تمرين زده کوونکو ته لولي او معنا کوي يې او بيا تمرين په دوی د محاورې په توګه اِجراء کوي. ښـوونکی ورسـره مرسته کوي او تشويقوي يې، او وروسته د پنځم تمرين يوه کلمـه پـه جمله کې استعمالوي لکه: هل اکلتَ الفطورَ؟ او بيا د دوو تنو ممتـازو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او پـاتي شـويو کلمو ته جملې جوړې کړي.<br>– محترم ښوونکی د ماضي فعل تبديلول په مضارع سره زده کوونکو تـه بيانوي او د شپږم تمرين دوه ماضي فعلونه په مضارع فعل تبديلوي لکه: | |

| | | |
|---|---|---|
| | أخذَ، يأخذُ، أمن، يأمنُ، أوهمَ.د مهموز أفعالو په باره کښې معلومات ورکوي او هغوی ته وايي چې مهموز فعل هغه فعل دی چې په حروفو کې يې يو حرف همزه وي او په درې ډوله دی: مهموز الفاءِ، مهموز العين، او مهموز اللام او نور مثالونه په زده کوونکو عملي کوي.<br>– محترم ښوونکی د اتم تمرين يو مثال زده کوونکو ته حلوي لکه: هذا صحن (کبير) او هغوی ته لارښوونه کوي چې د قوسونو څخه مناسبې کلمې پيدا او په تشو ځايونو کې يې وليکي.<br>– محترم ښوونکی د نهم تمرين کلمات په تخته ليکي او معنا کوي يې او هغوی ته لارښوونه کوي چې دغه کلمات ورسره تکرار کړي او بيا يې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>– د مثال په ډول: الأطعمةُ: خواړه.الاشربة: د څښلو توکي.السمک: کب.عصير التفاح: د منې اوبه.المرقُ: ښوروا.عصير قصب السکر.د ګنيو اوبه. | |
| ۵ دقيقي | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی د لوست الواجب المنزلي زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | |

**لوست: یو دېرشم (لومړۍ برخه).**

**سرلیک:** محل بیع الملابس.

**مخ: ۱۲۳**

**وخت: ۴۵ دقیقي** (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولولي او معنا یې کړي.
- محاوره عملاً اِجراء کړي.
- د راکړې ورکړې پر مهال د محاورې سوالونه په اعدادو سره زده کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

که چیرې عدد له یو څخه تر نهه نوي پورې وي د هغې معدود تل مفرد او منصوب وي لکه: خمسة عشر کتاباً، ثلاثون کتاباً.او که چیرې عدد سل یا زر او په همدې ډول وي د هغې معدود مفرد او مضاف اِلیه واقع کیږي لکه مائة کتابٍ، الفُ رجل.

د کلماتو معنا: محل بیع الملابس: د جامو (کالیو) پلورنځی.سعر: بیه.ملابس صیفیه: د اوړي کالي(جامې) بدلة: دریشي او کوټ (یوه جوړه کالي).بیضاء: سپین.غال: قیمتي.النقود: پیسې.

**د لوست میتودونه:** نمونه یې قرائت – مناقشه – تکرار – سوال او ځواب – یوکسیز.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تباشیر، تخته.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | – محترم ښوونکی وروسته له سلام اچولو، احوال پوښتنې، کورنۍ دندې له کتلو او د ټولګي له تنظیم څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– د دغې جملې معنا څه ده (هذا صحن کبیر).<br>– د انګېزې پارول د نوي لوست د عنوان د لاسته راوړلو لپاره.<br>– پلورنځي ته په عربي ژبه کې څه وایي؟ | |
| ۳۵ دقیقي | – محترم ښوونکی د لوست عنوان په تخته لیکي (محل بیع الملابس) او نوی لوست په لوړ آواز لولي او زده کوونکو ته وایي چې لوستلو تــه غوږ ونیسی او په دویم ځل یې ورسره ه یو ځای تکرار کړي.<br>– محترم ښوونکی د دریم ځل قرائت څخه وروسته جملې معنا کوي او مشکل لغات په تخته لیکي او معنا کوي یې او له زده کوونکو څخــه غواړي چې دغه کلمات په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– محترم ښوونکی دوه دوه زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي او د | |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰<br>دقیقي | محاورې په توګه پرې کار کوي، مرسته ورسره کوي او تشویقوي يې.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لومړي تمرين د مشابه کلماتو لاندې کرښې وکاږي د مثال په ډول (محل الملابـــس) (دکان).<br>۲ – ثمن. ۳ – قيمة مرتفعة. ۴ – الفلوس.<br>محترم ښوونکی د دويم تمرين سوالونه د زده کوونکو څخـــه پوښـــتي او وروڅخه غواړي چې دغو سوالونو ته ځواب ووايي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک لوست په سمه توګه لوستلای شي؟<br>– د اوړي کاليو ته په عربي کې څه وايي.<br>– څوک د دغې جملې معنا ويلای شي: کم سعرها؟.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی دلوست دريم تمرين زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | |

**لوست: یو دېرشم (دویمه برخه).**

**سرلیک:** محل بیع الملابس.

**مخ: ۱۲۵ – ۱۲۷**

**وخت: ۴۵** دقیقې (یو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

- صفت او موصوف په جملو کې اِستعمال کړای شي.
- هر یو مبتدا او خبر په سمه توګه د تذکیر او تانیث په مراعاتولو جوړ کړي.
- جمع تکسیر وپېژني.
- د کلماتو ضد وپېژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د مبتدا او خبر قاعده او د هغې رابطه: که چېرې مبتدا مؤنث وي خبر یې هم مؤنث راځي.

**جمع تکسیر:** عبارت له هغې اسم څخه ده چې له دوو څخه زیاتو ته استعمالیږي او د مفرد په بنا په هغې کې بدلون راځي او دغه جمع مختلفې صیغې لري.

**د کلماتو معنا:** ثقیل، درروند.خفیف: سپک.واسع: لوی، پراخه.ضیق: تنګ.من یخیطها: څوک یې ګنډي هغه.الصدریةُ: واسکټ.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکو فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکي وروسته له سلام اچولو، احوال پوښتنې، د کورنۍ دندې له کتلو او د ټولګي له تنظیمولو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– د کالیو پلورنځي ته په عربي ژبه کې څه وایي؟ | |
| ۳۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د زده کوونکو څخه غواړي هغه متضادې کلمې چې په څلورم تمرین کې شته دي هغه له دې سره یو ځای کړي او په خپله د هغوی اِشتباهات تر نظر لاندې نیسي او هغه اصلاح کوي او د تمرین د کلماتو معناوې په دې ډول دي: بائع: خرخوونکی. مشتري: اخستونکی.حار: ګرم. بارد: یخ. ثقیل: درروند.خفیف: سپک. رخیص:ارزانه.<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین په زده کوونکو باندې عملي کوي او که مشکل او غامض کلمات پکې وي هغه معنا کوي او | |

| | | |
|---|---|---|
| | وروسته زده کوونکو ته پنځه دقيقي وخت ورکوي چې د شپږم تمرين کلماتو ته له ځان څخه جملې جوړې کړي او بيا يې په تخته وليکي او وروسته دغه جملې په زده کوونکو تکراروي او بيا هغه ټول په خپلو کتابچو کې ليکي.<br><br>– **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی د لوست الواجب المنزلي زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي چې د جدول د کلماتو څخه اسم مکان جوړ کړي. | ۵ دقيقي |

**لوست**: **دوه دېرشم (لومړۍ برخه)**.

**سرليک:** مساعدة المحتاج.

**مخ:** ۱۲۹

**وخت:** ۴۵ دقيقې (يو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکو بايد:**

- لوست په سمه توګه ولولي او معنا يې کړي.
- د ماضي فعل متکلم صيغې وپېژني.
- د بيوزلو سره مرسته وکړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

ظرف زمان منصوب اسم دی چې د فعل د حصول زمان بيانوي.

ظرف مکان هم اسم دی چې د فعل د حصول مکان بيانوي.

**د کلماتو معنا:** عائداً: د راتلو په حال.يرتعدُ.لړزوي.الرکوب: سپريدل.اُساعدُ: همکاري کوم.العون: مرسته.

وصل: ورسيده.شکرني: زما څخه يې منته وکړه.

**د لوست ميتودونه:** نمونه يي قرائت، مناقشه، تکرار، يو کسيزه، او سوال او ځواب.

**د لوست مرستندويه توکي:** تخته، تباشير، کتاب.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | - محترم ښوونکی ورروسته له سلام اچولو، احوال پوښتنې، د کورنۍ دندي له کتنې او د ټولګي له تنظيم څخه ورروسته د تير لوست ارزونه کوي.<br>- څوک دغه کلمې په جمع سره بدلولای شي؟:<br>طويل، کبير، صغير).<br>- د انګيزې پارول د نوي لوست د عنوان د پيدا کولو لپاره.<br>- مرستې ته په عربي ژبه کې څه وايي؟ | |
| ۳۰ دقيقې | - محترم ښوونکی د سم ځواب د لاسته راوړلو وروسته د نوي لوست عنوان چې (مساعدة المحتاج) دی په ښوره تخته ليکي او زده کوونکي د دوی کتابونو ته متوجه کوي او نوی لوست د الله جل جلاله په نوم سره پيلوي.<br>- محترم ښوونکی زده کوونکو ته نوی لوست په لوړ آواز سره لولي او معنا کوي يې او بيا نوی لوست په څلورو تنو زده کوونکو | |

| | | |
|---|---|---|
| | تکراروي او د هغوی څخه غواړي چې لوست ولولي او معنـــا يـــې کړي.<br>– محترم ښوونکی د لوست د لومړي تمرين يو مثال زده کوونکو تـــه په تخته حلوي (او سمه معنا د قوسونو له منځ څخه انتخابوي).<br>– او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دوو نورو کلمو ته سمه معنا د قوسونو له منځ څخه و ټاکي.<br>– محترم ښوونکی د دويم تمرين سوالونه د زده کوونکو څخه پوښتنه کوي او ځوابونه يې د لوست مطابق له هغوی څخه غواړي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک دغه جمله معنا کولای شي (جلسَ الشيخُ في السيارة)؟<br>– څوک ويلای شي چې يخنۍ او لړزې ته په عربي کې څه وايي؟<br>– څوک د دغې کلمې مترادف ويلای شي: عائداً او عون)؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی د لوست دريم تمرين زده کوونکو ته کـــورنۍ دنـــده ورکوي.<br><br>**د لوست پيغام:**<br>محترم ښوونکی بايد زده کوونکو ته د همکارۍ او د محتاجو ســـره د مرستي کولو په موضوعګانو رڼا واچوي او هغوی پـــه دې برخـــه کـــې وهڅوي چې د ټولنې په روابطو کې خپل نقش روښانه کړي. | ۱۰ دقيقي |

**لوست: دوه دېرشم (دويمه برخه).**

**سرليک:** مساعدة المحتاج.

**مخ:** ۱۳۰ – ۱۳۲

**وخت:** ۴۵ دقيقي (يو درسي ساعت).

**موخې:**

**زده کوونکي بايد:**

- اِسم مکان په جملوکې استعمال کړای شي.
- د (کان) په عمل پوه شي.
- سوال او ځواب وکړای شي.
- مذکر اسماء په مؤنث سره بدل کړای شي.
- د معتل العين فعل وپيژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

کان: د ناقصه افعالو څخه دی چې په مبتدا داخلیږي او هغه مرفوع کوي او هغه ته د(کان) اسم وايي او خبر يې منصوب کوي چې هغه ته د (کان) خبر وايي.

معتل العين فعل: که چېرې د علت حرف د کلمې په عين مکان کې راشي هغه ته فعل معتل العين وايي او د متکلم په صيغه کې د علت حرف حذفيږي لکه چې د تمرين په مثالونو کې راغلي دي مثلاً: قام، قمتُ.کان: کنتُ.

**د کلماتو معنا:** دنا: نږدې شو.عفا: بخښل.رصيف: پياده لار.کفيف: ړوند.مظلة: چترۍ.

**د لوست ميتودونه:** مناقشه، تکرار – سوال او ځواب،يو کسيز او په ډله ييزه توګه.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب – تخته – تباشير.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکو فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقيقي<br><br>۳۵ دقيقي | – محترم ښوونکی ورروسته د سلام اچولو، احوال پوښتنې، د کـــورنۍ دندې له کتنې او د ټولګي له تنظيمولو څخه ورروسته د تير لوســـت ارزونه کوي.<br>– څوک حديث شريف چې په تير لوست کې مو لوستلی په يادو ويلای شي؟<br>– محترم ښوونکی د(کان) او د هغه عمل په باره کې زده کوونکو تـــه توضيحات ورکوي او هغوی ته وايي چې کان د ناقصه افعالو څخـــه دی او د مبتدا او خبر په سر کې راځي او مبتدا مرفـــوع او خبـــر منصوب کوي چې مبتدا ته اسم کان او خبر ته يې د کان خبر وايي او بيا دريم تمرين په تخته زده کوونکو ته په داسې ډول حلوي. | |

| | | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | - کان الجو بارداً - کان الطقس ممطراً.کان الولد سعیداً.کان التلمیذ مجتهداً.<br>- محترم ښوونکی د لوست څلورم تمرین چې د فعل المعتل څخه د متکلم صیغې جوړول دي زده کوونکو ته دری مثاله حلوي لکه: قال: قلتُ.عفا: عفوتُ.قام: قمتُ.او هغوی ته توضیح ورکوي که چېرې وغواړو د معتل فعل څخه د متکلم صیغې جوړې کړو د علت حرف حذفوو او نور مثالونه په زده کوونکو کاروي.<br>- محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین زده کوونکو ته لولي او معنا کوي یې او بیا د الف قایمه په تخته لیکي او د زده کوونکو څخه غواړي چې د ب له قایمې څخه مناسبې جملې وټاکي او د جملو مخ ته یې ولیکي او مرسته ورسره کوي.<br>- محترم ښوونکی د لوست اووم تمرین زده کوونکو ته لولي او معنا کوي یې او بیا تمرین په زده کوونکو د محاورې په شکل سره اجراء کوي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی (الواجب المنزلي) زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. | د څلورم تمرین حل:<br>زار - زرتُ.عاد: عدتُ.دنا: دنوتُ.شکا: شکوتُ.محا: محوتُ. |